إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ جَنَّاتُ النَّعِيمِ خَالِدِينَ فِيهَا وَعْدَ اللَّهِ حَقًّا وَهُوَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ (لقمان)

# الاعمال الصالحة

## (اسانه ښه عملونه)

مصنف

شیخ الاسلام حضرت مولانا مفتی محمد تقی عثمانی صاحب دامت برکاتہم العالیہ

مترجم

مفتی محمد معصوم افغانی

مکتبہ حکیم الامت
کاسی روڈ، کوئٹہ

تقریظ کریمه

نحمده ونصلی علی رسوله الکریم

حمد وثناء الله پاک لره چه په هر وقت او په هره زمانه کی یې حقانی
او حق پرسته او حق بیان علماء د دنیا ته رالیږلي او د عامه انسانانو
او د خصوصو مسلمانانو خدمات او دینی چارې او راهنمائي او کار سازي
ورباندې کوي

د پاک رب العلمین ډیر ډیر احسان دی چه په حاضر وقت کی یې
د حضرت مولنا شیخ الحدیث امام الوقت مولنا محمد تقی عثمانی صاحب
اطال الله تعالی حیاته وبقائه
مبارک کتاب (الاعمال الصالحة) په ذریعه د ګران ورور محترم
المحب فی الله والمبغض فی الله
مجاهد او خادم د اسلام عالم جید مولنا مفتی معصوم صاحب
دامت حیاته وبرکاته
ترجمان د دغه مبارک کتاب د موږ تر ورسیدې
چه د هر مؤمن مسلمان د پاره لائق دی چه د غاړې

تعویذ او جیب ورد او وظیفه یې وګرځوي
جزاه الله تبارک وتعالی فی الدارین
خیراً کثیراً
ومن الله التوفیق وبه الاعتصام وعلیه التکلان
العبد الضعیف الحقیر عبد العلی الدیوبندی
الحنفی النقشبندی
عفا الله عنه وعن والدیه

## د مصنف لنډه پېژندنه:-

محقق العصر، فقيه الملة، شيخ الاسلام، حضرت العلامة مولانا مفتی محمد تقی عثماني صاحب (دامت برکاتهم العالية) د اوسني عصر يو نابغه شخصيت جيد محقق عالم او مذهبی لارښود دی. د اسلامي علومو او عصري فنونو جامع ښښتن دی، په تفسير، حديث، فقه، سيرت، تاريخ، ادب او وارو اسلامي علومو کې کامل مهارت لري، د حميده اوصافو او جامع کمالاتو له امله په ټول اسلامي نړۍ کې منل شوی، د قدر وړ او د نړۍ په عظيم علمي کدرونو کي د عالي مقام خاوند دی.

د شوال پر پنځم تاريخ په کال ۱۳۶۲ هـ سنه کي وفاني دنيا ته سترګي پرانستلي، د اولسو کلونو په عمر کي د دارالعلوم کراچي نه فارغه شوی، نامتو استادان يې هر يو لکه مفتی اعظم حضرت مولانامفتی محمد شفيع صاحب، فقيه العصر حضرت مولانا مفتی رشيداحمد لدهيانوي صاحب، شيخ الحديث حضرت مولانا سحبان محمود صاحب او حضرت علامه مولانا شمس الحق صاحب (رحمهم الله تعالی) غوندي علمي او روحاني خيري دي.

د کال ۱۹۶۰ سنه نه بيا تر اوسه د بيلو اسلامي علومو په تدريس بوخت دی، د کتاب مترجم په کال ۱۴۱۱ هـ سنه کي ترمذي

شريف ځيني لوستلي خو اوس نوموړی شيخ الحديث يعني د بخاري شريف درس ورکوي.

د روحاني علومو لپاره يې د حکيم الامت حضرت مولانا اشرف علی تهانوي "قُدِّسَ سِرُهُ" وارشد خليفه حضرت ډاکټر محمد عبدالحی عارفی (رحمه الله) ته رجوع کړې او نوموړي خلافت ورکړی.

حضرت شيخ الاسلام (د امت برکاتهم) د عظيم علمي صلاحيت له کبله ډېر مسئوليتونه په غاړه لري، د جامعه دارالعلوم کراچي نائب رئيس، شيخ الحديث د مياشتنی مجله "البلاغ" اردو او انګريزي اعلی مدير، د تصنيف او د تاليف د څانګي رئيس، د جدّی د علمي مجلس نائب رئيس، په اسلامي معيشت کي د ډېر زيار له وجهي د مختلفو اسلامي هيوادونو د اسلامي بانکونو د شريعت کميسون عضو ټاکل شوی حضرت شيخ الاسلام "د امت برکاتهم" د سود متبادل اسلامي معاشي نظام په ډېر هاند او هڅو سره مرتب کړی چي دا د نوموړي ډېره ستره تاريخي کارنامه او په اسلامي امت يې احسان هم دی ولي چي اسلامي دولتونه کولای شي چي د همدې نظام په نافذولو سره مسلمانان د سود د لعنت نه وژغوري او اسلامي معاشي نظام نافذ کړي.

حضرت الاستاد د امت فيوضاتهم څرنګه چي د اسلامي علومو او عصري فنونو جامع عالم دی او هم په انګريزي ژبه کي بشپړ مهارت لري د امريکا، اروپا، استراليا، افريقا او د اسلامي هيوادونو په

شمول د اسلامي جمعيتونو له خوا دعوت ورکول شوى او په دېغو محافلو کي يې د مسلمانانو رهبري کړي او د هغو د ستونزو يې شرعي حل لټولى چي سفرنامه يې په نامه د "جهان ديده" او دنيا مري اګي خپره شوې.

حضرت شيخ الاسلام د وخت ډېر قدر کړي او تصنيف او تأليف ته يې ډېره توجه کړې د شپېتو په حدودو کي يې تأليفات او اثرات خپاره شوي په عربي، اردو او انګريزي ژبو کي اسلامي نړۍ ځني استفاده کوي، ځيني په لاندي ډول دي:

(١) تکملة فتح الملهم ٦ ټوکه، شيخ الاسلام علامه شبير احمد عثماني رحمة الله عليه مؤلف تفسير عثماني (کابلی) د مسلم شرح پيل کړي پنځه ټوکه شوې خو نوره پاته وه حضرت الاستاد د امت برکاتهم ددې تکمله په شپږ ټوکه کي ليکلې د همدې عظيم خدمت له امله د وخت عالمانو د "شيخ الاسلام" لقب ورکړى، (٢) ماهِي النصرانية، (٣) درس ترمذي ٣ ټوکه، (۴) حجيت حديث، (۵) فقهی مقالات ۴ ټوکه، (٦) بحوث فی قضايا فقهية معاصرة، (٧) احکام اعتکاف، (٨) تقليد کي شرعی حيثيت، (٩) علوم القرآن، (١٠) د قرآن پاک انګريزي ژباړه، (١١) د معارف القرآن تفسير انګريزي ژباړه، (١٢) اصلاحی خطبات ١٣ ټوکه، (١٣) اسلام اور جديد معيشت وتجارت، (١۴) مآثر حضرت عارفی، (١۵) حضرت معاويه اور تاريخي حقايق، (١٦) حکيم الامت کي سياسي افکار، (١٧) بائبل کيا هي، (١٨) بائبل سي قرآن تک، (١٩) اکابر ديوبند .....،

(۲۰) احكام الاوراق النقدية. او داسي نور..... او دغه لړۍ اوس هم دوام لري.

د حضرت شيخ الاسلام د امت بركاتهم د اسلام او مسلمانانو په اړه خدمتونه ډېر زيات دي چي په دغه مختصر مضمون كي نه شي راتلای نوموړی د خپل بزرگواره والد مفتی اعظم، مفسر القران حضرت مولانا مفتی محمد شفيع صاحب قدس سره په شان په اسلام او علمي نړۍ كي يو ځلانده ستوری دی.

اين سلسله از طلائی ناب ست　　　اين خانه تمام آفتاب ست

"آسان نيكيان" يعني اسان ښه عملونه هم دده ډېر گټور تصنيف دي، د دو اتيا (۸۲) په شمېر كي يې داسي اسانه ښه عملونه د قراني آيتونو، او نبوي احاديثو په رڼا كي جمع كړي چي كول يې ډېر اسانه او ثوابونه يې بې حسابه دي چي په لږ فكر او زيار سره انسان ډېر څه لاس ته راوړای شي اسانه پښتو ژباړه مو په "الاعمال الصالحة" سره نوموله د كتاب په اړه د مصنف وضاحت كافي دی نور نو د عمل په هيله.

ولي چي انسان ودنيا ته د همدې مقصد لپاره راغلی لكه الله تعالی چي فرمايي:

وَمَا خَلَقْتُ الْجِنَّ وَالاِنْسَ اِلاَّ لِيَعْبُدُوْنَ.

"پيريان او انسانان د عبادت لپاره پيدا كړل شوي دي"

او حديث دی: اَلدُّنْيَا مَزْرَعَةُ الاٰخِرَةِ.

...یا کښته ده د آخرت د همشیني ژوند لپاره.

والسلام

محمد معصوم افغاني. ۱۲. ۳. هـ ۱۴۲۵.
۱۲/ ۳/ ۱۴۲۵هـ

# سریزه

اَلْحَمدُ لله وَكَفىٰ وسلامٌ علىٰ عباده الذين اصطفىٰ.

الله تعالىٰ دنیا له دې کبله پیدا کړې ده چې د هغه بندګان دلته په اوسېدلو سره د خپلو ښو عملونو په سبب د خپل آخرت لپاره څه تیاري وکړي او داسي کارونه وکړي چې ورڅخه د الله تعالىٰ رضا او خوشحالي تر لاسه کړي.

خو موږ د دنیا په کاروبار په بوختېدو سره د خپل ژوند د اصلي مقصد څخه غافل پاته شوي یو، د سهار څخه نیولې تر ماښامه پوري ټوله وخت د خپل ژوند د ډېر ښه کولو او خوندور ګرځولو کې تېره ؤ، او په دغه هاند او کوښښ کې ډېر لږ د الله جل جلاله بندګان داسي دي چې ورته د خپل آخرت د ښه کولو فکر ورسره دی، حال دا چې دغه خبره په ثبوت رسېدلې چې ورڅخه هیڅ کوم دهري هم انکار نشي کولای چې یو ورځ له دې دنیا څخه تلل دي او د تللو دغه وخت هم ټاکلی نه دی، خدای خبر چې کله رغ وشي؟

اسلام چي د آخرت سمولو لپاره کومي طريقې ښوولي دي په حقيقت کي هغه کومي ستونزمني نه دي ، بلکي که چيري انسان دغه طريقې غوره کړې نو د هغه دنيوي ژوند به هم ډېر په ارامه وي، خو نن زمان د خلکو په ذهنونو کي دغه خبره پرته ده چي پر اسلامي تعليماتو عمل کول ډېر ستونزمن کار دی چي د هغه لپاره به خپل ډېري دنيوي ګټمي، ډېرخوندونه او ډېر عيش او ارام به قربانيږي. نتيجه داده چي ډېر خلک ددغه مشکل او ستونزي په تصور سره پر دغه لارڅو ګامه اخيستل هم نه اخلي.

حال دا چي لومړی خو اسلامي حکمونه په خپل ذات کي کوم ستونزمن نه دي او کوم د الله بنده چي پر دغه باندي عمل کول وغواړي د الله ﷻ له لوري ورسره کومک هم کيږي او د هغه دنيا او آخرت دواړه ښکلي کيږي.

دوهم دا چي که چيري فرضاً پر يو حکم باندي عمل کول ستونزمن يا کومه سختي پکښي وي نو هغه سختي او تکليف د آخرت د هميشنۍ ګټمو په مقابل کي کوم حيثيت نه لري او دغه انسان بيا د رزق او پيسو ګټلو لپاره محنت هم کوي او دغه محنت خوښوي هم، ولي چي ورته معلومه ده چي ددې په بدل کي پيسې راکول کيږي، دغه ډول که چيري د اسلامي

احکامو د عمل کولو په نتیجه کې د آخرت هغه نعمتونه ورکول کیږي چې د هغو موږ په اوس وخت کې تصور هم نه شو کولای، نو د داسې عظیم مقصد لپاره د لږ تکلیف څخه بیا وېره ولې وي؟

دریمه خبره داده چې د اسلامي احکامو او تعلیماتو څخه څه خو داسې دي چې پر هغوی باندې د عمل کولو لپاره څه لږ محنت کول غواړي، خو الله ﷻ ډېر داسې عملونه رانښوولي چې د هغوی په عمل کولو کې نه کوم خاص تکلیف شته، نه ډېر وخت پکښې صرفیږي، نه هم ډېرې پیسې خرڅیږي خولږ د فکرکولو خبره ده که انسان لږ توجه وکړي نو د څه محنت یا خرڅولو څخه پرته د هغه په اعمال نامه کې د نیکیو زیاتوب راځي او که انسان ددغو اعمالو پابندي وکړي، نو انشاء الله ډېر په آسانۍ سره د آخرت ډېره ذخیره جمع کولای شي.

په اعمال نامه کې د صالحو عملونو د زیاتوب نن وموږ ته کماحقه قدر او اهمیت معلوم نه دی خو کله چې دغه روڼې سترګې بندې شي، د الله ﷻ په حضور کې حاضري وشي او د حساب او کتاب مسئله را وړاندې شي هغه ورځ به معلومیږي چې د یو کوچنۍ نېکۍ څومره اهمیت دی؟ د هغه ځای سیکه

روپۍ او پيسه نه ده، هلته سره زر او سپين زر و انسان ته په ښه نه ورځي د هغه ځای سيکه دغه ښه عملونه دي او دغه پوښتنه به کيږي چې په خپل لمن کي دي څومره ښه عملونه راوړي دي؟ هغه وخت که لمن خالي وي نو تأسف او نه زغمېدونکی تأسف او پښېماني به وي چې موږ په دنيا کي په خپل اعمال نامه کي زياتوب ولي ونه کړ؟ خو هلته به د عمل وخت ختم شوی وي له دې کبله دغه پښېماني به څه ګټه ونه کړي.

ومعززو اصحابانو ﷺ ته ددغو ښه عملونو قدر او اهميت معلوم وو نو هغوی ددغو نېکو عملونو ډېر حريص وو چيري چې به ورته د يو عمل په باب معلومه شوه چې له دې څخه الله تعالى راضي کيږي ژر به يې هغه عملي کی. او د کوم عمل ثواب چې به په ځنډ ورته معلوم شو نو پر هغه يې ډېر تأسف کوی چې دغه موږ ته مخکي ولي نه ؤ معلوم ولي خو موږ به وړاندي عمل پيل کړی وای.

حضرت عبد الله بن عمر ﷺ ته حضرت ابوهريره ﷺ دغه حديث واوروی: چې کوم څوک د يو چا د جنازې لمونځ وکړي هغه ته د يوه قيراط[له] ثواب ورکول کيږي او کوم چې د مړي دښخېدو پوري جنازې سره ولاړ شي وهغه ته دوه قيراط

---

[له] قيراط يوه پيمانه ده چې سره او سپين زر په تلل کيږي.

ورکول کیږي چي هر يو به د اُحُد د غره په شان غټ وي

حضرت عبد الله بن عمر ﷺ د حضرت عائشه رضی الله عنها څخه د دغه حديث په باب پوښتنه وکړه، هغې هم د حضرت ابوهريره ﷺ تصديق وکړ نو حضرت ابن عمر ﷺ ناڅاپه وويل: چي موږ خو ډېر قيراطونه ضائع کړي دي. (ترمذي)

مقصد دا چي هر ښه عمل د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا سبب دی ډېر د قدر وړ دی او صرف په دنيا کي د هغه څخه ګټه اخيستل کېدای شي

او په ځانګړې توګه داسي نېک عملونه چي په کولو کي يې کوم تکليف نه وي. هغه صرف د بې باکۍ او غفلت له کبله پرېښول دومره د تاوان سودا ده چي په آخرت کي به ددې پښېماني نه زغمېدونکې وي

له دې کبله دغه فکر راسره پيدا شو چي په يوه مختصره رساله کي د داسي آسانه ښو عملونو يو فهرست جمع کړل شي چي د هغه په کولو کي نه کوم محنت صرفيږي او نه هم کوم خاص وخت، خولږ د توجه په ذريعه د انسان په اعمال نامه کي زياتوب او برکت راځي

د مسلمانانو څخه هيله ده چي هغوی دغه زرين اعمال په

فکر او جذبې سره ولولي او دا د خپل ژوند په معمولاتو کې داخل کړي، څه لیري خبره نه ده چې دغه په ظاهره کوچنې کوچنې اعمال د الله ﷻ په رحمت سره زموږ ژوند د الله ﷻ د رضا مطابق وګرځوي او په دغه سبب سره زموږ کښتی کامیابه پورې وزي.

الله ﷻ دې په خپل فضل او کرم سره احقر او ټولو مسلمانانو ته پر دې د عمل کولو توفیق ورکړي او په خپل دربار کې یې په قبلولو سره زموږ آخرت دې ښکلی کړي.

آمین ثم آمین

**احقر محمد تقی عثماني عفی عنه**

**دارالعلوم کراچي ۱۴**

**۱۹جمادي الثانیه ۱۴۰۹**

## څو اړینې (ضروري) خبرې:-

په دې کتاب کې د هغو اعمالو بیان شوی چې په کولو کې يې کوم خاص تکلیف یا محنت نشته، خو اجر او ثواب يې ډېر زیات دی، ددې موخه داده چې ددغه اسانه ښو اعمالو عمل کولو او دغه د اخرت ذخیره ګرځولو لپاره یوه داعیه (محرک) په زړونو کې پیدا شي، خو ددې کتاب د لوستلو په وخت لاندې خبرې په ذهن کې راوستل ضروري دي.

(۱) ددې کتاب موضوع څرنګه چې صرف د هغو نیکیو بیان دی چې ډېر اسانه دي او هر څوک يې پرته له کومه مشقته ژر شروع کولای شي له دې کبله په دې کې د فرائضو او واجباتو او نورو ډېرو ضروري اعمالو بیان نشته، له دې امله دغه خبره ښه په یاد ولرئ چې دین فقط په دغو اعمالو کې منحصر نه دی کوم چې په دې کتاب کې بیان شوی دی د دین احکا[م] د ژوندانه په هره څانګه کې شته او د هر مسلمان فریضه

ده چې هغه ټوله ارکان، فرائض او واجبات عملي کړي او د ګناهونو څخه ډډه وکړي، خو ددې کتاب دوه هدفه دي:

یو دا چې کوم حضرات د وړاندې څخه د فرضونو او واجباتو اهتمام کوي هغوی ته نور هم د داسې اعمالو ترغیب ورکول شي چې هغوی په خپل اعمال نامه کې په اساني سره ډېر قیمتي زیاتوب وکړي او دوهم هدف يې دادی چې کوم کسان دین ستونزمن ګڼي او له دې څخه بالکل غافل ناست وي هغوی ته د داسې اسانه عملونو ترغیب ورکول شي چې پیل کول يې کوم ګران کار نه دی او هغوی له دغو اسانه عملونو څخه د دین د لوري د پرمختګ کولو لپاره ژر تر ژره شروع وکړي او امید دادی چې که په دغه اسانه عملونو هغوی پابندي وکړي نو انشاء الله د هغوی په زړونو کې په کراره کراره د دین پر ټولو احکامو د عمل کولو شوق پیدا شي او اخر به بشپړ دیني ژوندون خپلول و هغوی ته اسانه شي.

دوهمه خبره داده چي په دې کتاب کي ځای پر ځای داسي احاديث راوړل شوي دي چي په بعضي اسانه عملونو باندي د ګناهونو د بخښښ وعدې شوي دي ، د داسي احاديثو د مطالعې په وخت دغه خبره په ذهن کي ولري چي د صالحو اعمالو سره چي کومي ګناهوی خپله معافيږي د هغوی څخه مطلب صغيره (وړوکي) ګناهوي دي تر کومه حده چي د کبيره ګناه تعلق دی هغه د قانون سره سم د توبې پرته نه معافيږي، د قرآنکريم ارشاد دی:

اِنْ تَجْتَنِبُوا كَبَائِرَ مَاتُنْهَوْنَ عَنْهُ نُكَفِّرْ عَنْكُمْ سَيِّئَاتِكُمْ. (النساء- ۳۱)

**ژباړه**: که تاسي د غټو ګناهونو څخه ځان وساتئ نو موږ به ستاسي وړوکي ګناهوي معاف کړو.

دغه ډول هغه ګناهونه چي تعلق يې له حقوق العباد (د بندګانو د حقوقو) سره دی هغه تر هغه وخته نه معافيږي ترڅو چي و حقدار ته د هغه حق ور ونه

رسوي يا صاحب د حق يې معاف نه کړي.

له دې امله په دې کتاب کې د بېلا بيلو صالحو اعمالو په بدل کې چې د ګناهونو د معافۍ بيان دی له دې څخه دې څوک دغه غلط فهمي نه کوي چې هغه چې هر ډول څومره ګناهوي کوي د توبې پرته هم د اسانه اعمالو په سبب معافولای شي.

حقيقت دادی چې په کوم چاپريال کې حضرت محمد مصطفی ﷺ د بېلا بيلو نيکيو په بدل کې د ګناهونو د معافۍ بيان کړی هلته دغه تصور ډېر ګران ؤ چې يو مؤمن دي په کومه کبيره (غټه) ګناه کې ککړ وي او له دې څخه دي توبه نه کاږي له دې سببه هغه وخت د خلکو زياتره ګناهوي صغيره وي له دې امله حضرت محمد مصطفی ﷺ ددې د معافۍ بيان کړی دی، له دې څخه د کبيره ګناه د غټ والي او د توبې د ضرورت او اهميت لړ والی نشي کېدای.

ددغه دوو خبرو د رعايت کولو سره سره بلي خوا ته د حضرت محمد مصطفی ﷺ دغه ارشاد هم هېر نه کړل

شي چي: لَاتَحْقِرَنَّ مِنَ الْمَعْرُوْفِ شَيْئًا.

**ترجمه** : "د نيکي هيڅ خبره بېکاره مه ګڼه".

له دې کبله د شيطان په دې فرېب کي هم هيڅکله راتلل نه دي پکار که چيري موږ د دين د غټو کارونو د کولو څخه محرومه يو نو دغه وړوکي وړوکي نيکۍ موږ ته څه ګټه رارسوي؟ حقيقت دادی چي د نيکۍ هيڅ عمل کوچنی نه دی او کوم وخت چي د کومي نيکي توفيق وشي هغه بايد غنيمت وګڼل شي خامخا يې کول پکار دي، څه ليري خبره نه ده چي الله جل جلاله دغه نيکي او ښه عمل قبول کړي نو ددي له برکته زموږ نور ژوند هم برابر کړي.

ددغه جذبې او معتدل فکر سره ددې کتاب مطالعه به انشاء الله ګټوره ثابته شي، الله جل جلاله دي په خپل فضل او کرم سره په خپل دربار کي قبول کړي او د دين پر ټولو احکامو باندي موږ ټولو ته د عمل کولو توفيق را په برخه کړي. آمين ثم آمين.

## (۱) ښه نیت کول:-

د نیت په صورت کي الله ﷻ ومؤمنانو ته د کیمیا هغه نسخه ورکړې ده چي په هغه سره هر مسلمان په لږ توجه سره خاوري هم سره زر ګرځولای شي، په حدیث کي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی: چي "د ټولو اعمالو تعلق په نیتونو سره دی".

ځیني کسان ددې مطلب دا فهموي چي په ښه نیت سره غلط کار هم سمېدلای شي او ګناه هم ثواب ګرځېدلای شي دغه خبره یقینًا غلطه ده، ګناه په هر حالت کي ګناه ده، په څومره ښه نیت سره چي وشي هغه نه شي جائز کېدلای، مثلاً یو څوک د یو چا د کوره په دې نیت غلا کوي چي کوم مال لاس ته راغی هغه به خیراته ومه نو په دغه نیت سره د غلا کولو ګناه نه معافیږي ،خو د حضرت محمد ﷺ د پورتني ارشاد مطلب دادی چي:

**لومړی:** پر هیڅ ښه عمل باندي تر هغه وخته ثواب

نه ورکول کیږي تر څو چي په صحیح نیت سره ونه شي، د مثال په ډول د لمانځه ثواب هغه وخت ورکول کیږي چي کله هغه د الله ﷻ د رضا لپاره وشي. که د ریاکارۍ لپاره وشي نو ثواب یې ختم، بلکي ګناه لا هم لري.

**دوهم:** مطلب دادی او دغه اوس بیانول مقصود دی چي څومره کارونه مباح یا جائز دي، د هغوی اصلي حکم دادی چي نه پر هغه باندي ثواب شته نه عذاب، خو که هغه جایز کار په ښه نیت سره وکړل شي نو هغه عبادت ګرځي او کوونکي ته ثواب ورکول کیږي مثلاً ډوډۍ خوړل له مباح کارونه څخه ده خو که یو څوک ډوډۍ په دې نیت وخوري چي په دې سره زه طاقتور شم نو دغه طاقت د الله ﷻ په اطاعت کي صرفوم نو دغه ډوډۍ خوړل هم د اجر او ثواب باعث ده او یا په دغه نیت ډوډۍ وخوري چي الله ﷻ زما د نفس پر ما باندي هم حق ټاکلی دی. ددې د ادا کولو

لپاره ډوډۍ خورم او یا یې په دغه نیت وخوري چې په دې سره خوند او راحت راته حاصل شي نو د زړه د اخلاصه به د الله ﷻ شکر ادا کوم نو په دغو نیتونو سره ډوډۍ خوړلو کې هم ثواب شته.

مقصد دا چې د ژوندانه هیڅ یو مباح کار داسې نشته چې هغه په ښه نیت کولو سره عبادت او د ثواب وړ ونه ګرځول شي مثلاً د ښه نیت څو مثالونه چې ورځخه مونږ د ورځني کارونو د ثواب وړ جوړولای شو، په لاندې ډول دي:

روزي ګټل، هغه که د سوداګرۍ په شکل کې وي یا د ملازمت په صورت کې یا د کښت او صنعت په صورت کې په دې کې که انسان دا نیت وکړي چې الله ﷻ زما په ذمه چې زما د نفس او زما د کوروالاؤ حقوق مقرر کړي دي. دغه خواري له دې امله کارم چې هغه حقوق په ښه طریقه ادا کړم نو د حلال رزق دغه ټوله معامله عبادت او ثواب ګرځي.

بیا که په دې کې دغه نیت هم وکړي چې خپله ګټه د

ځان او د کوروالاوو پر ضروریاتو د خرڅولو وروسته
چي څه پاته کیږي د هغه څخه د غریبانو کومک او په
نورو نیکو کارونو کي صرفوم نو په دغه نیت نور هم
ثواب ورکول کیږي.
که یو سړی اوس تعلیم حاصلوي او هغه دغه نیت
وکړي چي زه د دغه علم په ذریعه د خلکو خدمت کوم،
مثلاً یو څوک دیني علم حاصلوي نو مخلوق ته د دین
رسولو نیت وکړي د طب پوهنتون طالب دی نو دغه
نیت وکړي چي د ډاکټرۍ په ذریعه د ناروغانو خدمت
به کوم، د انجینرۍ طالب دی نو دغه نیت وکړي چي
زه په دې فن سره د وطن او قوم خدمت کوم، یو بل
کمال زده کوي نو په دې مقصد سره یې زده کړي چي
کوم خلک ودغه هنر ته اړ وي د هغوی حاجت به پوره
کیږي، نو انشاء الله څومره وخت چي هغه د تعلیم په
حاصلولو کي تېره وي هغه ته د دغه ښه نیت ثواب
ورکول کیږي.
بیا چي انسان کومه پېشه غوره کړي په دې کي دا

فکر وکړي چي د رزق ذمه خو الله ﷻ په خپله ذمه اخیستې ده. هغه خو به په یو صورت کي خامخا ورکول کیږي او د لاس ته راوړلو او ګټلو یې ډېري لاري دي خو زه هغه فلانی لاره غوره کوم چي ددې په ذریعه د الله د مخلوق خدمت وکړم نو دغه پېشه هم د اجر باعث ګرځي.

مثلاً یو څوک ډاکټر جوړیږي نو دغه نیت وکړي چي د رزق د ډېرو لارو څخه دغه لاره ما له دې کبله خوښه کړې چي ددې په وسیله په تکلیف کي بوخت کسانو کومک کیږي نو هغه که څه هم د ناروغانو څخه جائز او مناسبي پیسې اخلي بیا به هم انشاء الله ددې نیت ثواب ورکول کیږي او کله چي حقیقتًا هم دغه نیت وي نو ښکاره خبره ده چي داسي حالات به هم راځي چي کله هغه یو غریب ووینې خو د هغه علاج مفت یا په رعایت سره وکړي.

یو څوک بیا د نوکرانو تجارت کوي او هغه دا نیت وکړي چي د هر انسان په ذمه شرعًا جامې اغوستل

واجب دي، زه د ډېرو کارونو څخه دغه له دې کبله غوره کوم چي ددې په ذريعه و مخلوق ته د واجب په ادا کولو کي کومک وکړم نو اميد دی چي انشاء الله دغه پېشه به باعث د ثواب وي.

دغه ډول که يو سړی دولتي ملازم وي نو په خپل ملازمت کي دغه نيت وکړي چي ددې په ذريعه د مخلوق د کارونو د پوره کولو موقع په لاس راځي نو هغه که دغه کار په تنخواه سره کوي انشاء الله ددغه نيت ثواب به ورکول کيږي مقصد دا چي هيڅ يو پېشه داسي نشته چي په هغه کي کوم ښه نيت دي وکړل شي.

دغه ډول ښه جامې له دې کبله واغوستل شي چي الله ما ته کوم نعمت راکړی دی د هغه اثر ښکاره شي او کتونکی خوشحال شي (نه دا چي هغه ما غټ يا خان وګڼي)

د خپلو بچيانو سره په دې نيت سره محبت وشي چي د حضرت محمد مصطفی ﷺ سنت دادی: چي ده

مبارک به د بچیانو سره محبت کوی.

د کور کار په دغه نیت وشي چي حضرت محمد ﷺ چي به کله کور ته تشریف ورووړی نو د کور په کارونو کي به یې د زنانو سره کومک کوی.

د ښځي او ماشومانو سره د خوشحالۍ خبري په دې نیت وکړل شي چي دا د حضرت محمد ﷺ سنت دی او ده مبارک د کوروالاوو سره د ښه سلوک حکم کړی دی.

د مېلمنو سره ښه چلن په دې غرض وکړل شي چي د مېلمه اکرام سنت دی او دا د مؤمن د حقوقو څخه دی.

په کور کي یو بوټی یا درخته په دې نیت سره ولګول شي چي په دې سره یو انسان یا څاروي ته ګټه ورسي او وکتونکي ته دغه منظره ښه وبریښي نو به هغوی خوشحاله شي.

خپل خط په دې نیت سره صفا او ښایسته د لیکلو څخي وشي چي ولوستونکو ته اساني وي.

ښځه جایز ښایست له دې امله وکړي چي خاوند

خوشحاله شي او سړی بیا په دې نیت صفا وګرځي چي ښځه خوشحاله او راحت ومونډي.

جایز تفریحات د ضرورت په اندازه په دې غرض سره وشي چي له دې څخه د فرائضو په ادا کولو کي چالاکي او تازګي ومونډل شي.

ساعت (ګړۍ) په دې نیت سره استعمال شي چي په دې سره د لمانځه د وختونو خبرتیا وشي او د وخت قدر او قیمت وپیژني او په ښه کارونو کي یې صرف کړي.

مقصد دا چي دغه خو څو بېلا بېل او سرسري مثالونه وه ، ولي چي امام غزالي رحمة الله عليه په احیاء العلوم کي رښتیا فرمایلي دي: د انسان د ژوند کوم جایز کار داسي نشته چي هغه په کوم ښه نیت کولو سره د ثواب کارونه ګرځول شي، تر دې پوري چي ښځه او خاوند په خپل منځ کي یو له بله که په دغه نیت سره خوند اخلي چي یو له بل حق ادا کړي او له دې څخه به د دواړو عفت او پاکي هم خوندي وي ، نو

په دغه عمل به هم ثواب ليکل کيږي.

## (۲) دعاء:-

الله ﷻ د بندګانو دعا کول ډېرېو خوښ عمل ګڼي، په دنيا کي د يو سړي څخه په وارو وارو څه ناڅه وغوښتل شي نو هغه که هر څومره غټ سخي وي اخر به ستړی او خفه به شي.

خو د الله ﷻ معامله داده چي دده څخه بنده چي څومره زيات وغواړي الله دده څخه دومره زيات خوشحاله کيږي ،بلکي په حديث کي دي چي کوم څوک د الله ﷻ څخه شی نه غواړي د هغه څخه الله ﷻ خفه کيږي.

بيا صرف دا نه چي دعا ، د خپل مقاصدو د لاس ته راوړلو ذريعه ده، بلکي دا ځانته يو عبادت دی، يعني دعا که د خپل شخصي او دنيوي هدف لپاره وغوښتل شي هغه هم عبادت شمېرل کيږي او پر دې ثواب ورکول کيږي او څومره چي ډېره دعا کيږي دومره د

الله جل جلاله سره په تعلق کي زياتوب راځي، دا ضروري نه ده چي صرف په تنګي او د مشکلاتو په وخت کي دعا وغوښتل شي بلکي د خوشحالۍ او فراخي په وخت کي هم دعاګاني کول په کار دي. په حديث کي راځي:

چي کوم څوک غواړي چي د غمونو او تکليفونو په وخت کي دده دعاګاني قبولي شي نو هغه ته په کار ده چي د خوشحالۍ په مهال دي دعاګاني ډيري کوي.

(جامع الاصول د ترمذي په حواله)

الله جل جلاله په قرآن کريم کي وعده کړې چي "زما څخه دعا وغواړه زه يې قبلوم" د الله جل جلاله دغه وعده نشي غلطېدای، له دې کبله په دې يقين سره دعا غوښتل په کار ده چي هغه خامخا قبليږي، هو! د قبوليت صورتونه بېلا بېل دي. ځيني وختونه هغه غوښتل شوی شی ورکول کيږي، او ځيني وختونه هغه شي د الله جل جلاله په علم کي د بنده لپاره مناسب يا ګټور نه وي نو الله جل جلاله تر هغه ښه او ګټور شی په دنيا يا په اخرت

کي ورکوي دغه ډول د هري دعا درې فايدې دي.

**لومړی:** د دعا په قبلېدو سره غوښتل شوي شيان ورکول کيږي.

**دوهم:** په هري دعا باندي ثواب ورکول کيږي.

**دريم:** د دعا په ذريعت سره د الله جَلَّ جَلَالُهُ سره په تعلق کي زياتوب راځي.

بيا که څه هم د دعا غوښتلو په ادابو کي دغه خبره شته چي مخ پر قبله لاسونه اوچت کړل شي په ژبه سره دعا وغوښتل شي او لومړی حمد او ثناء او درود شريف ولوستل شي خو که ددې وخت نه وي نو له دې څخه پرته هم دعا کول جايز ده او دغه ډول الله جَلَّ جَلَالُهُ دعا دومره اسانه کړې ده چي هغه تقريبًا پر هروخت او هر ځای کي غوښتل کېدای شي، په تلو راتلو، کار کولو کي هم او که په ژبه سره د غوښتلو وخت نه وي (مثلاً په بيت الخلا کي) نو په زړه کي هم دعا غوښتل کېدای شي.

## (۳) مسنون دعاګاني:-

هسي خو هر حاجت د الله ﷻ څخه غوښتل په کار دي، خو د دوارو جهانو سردار محمد ﷺ د ورځي او شپې په بېلا بیلو وختونو کي څه خاص دعاګاني ښوولي دي مثلاً د خوب څخه د اوچتېدو په وخت کومه دعا لوستل کیږي؟ د بیت الخلاء ته د تلو څخه وړاندي کومه دعا ده؟ د بیت الخلا څخه د راوتلو وروسته کومه دعا لوستل کیږي؟ د اوداسه کولو په وخت، ومسجد ته د ننوتلو په وخت، د مسجد څخه د وتلو په مهال د کور ته د ننوتلو په وخت، د ډوډۍ خوړلو څخه مخکي، د ډوډۍ خوړلو وروسته، د اذان اورېدلو وروسته، د جامې اغوستلو په وخت، په هینداري کي د کتلو په وخت، و بستر ته چي ورسي د خوب نه وړاندي، مقصد په مختلفو وختونو کي بېلا بیلي دعاګاني ښودل شوي دي کوم چي زموږ د دین اودنیا د ټولو ضرورتونولپاره ډېرجامع او ګټوري

## (۳) مسنون دعاګاني:-

هسي خو هر حاجت د الله ﷻ څخه غوښتل په کار دي، خو د دوارو جهانو سردار محمد ﷺ د ورځي او شپي په بېلا بيلو وختونو کي څه خاص دعاګاني ښوولي دي مثلاً د خوب څخه د اوچتېدو په وخت کومه دعا لوستل کيږي؟ د بيت الخلاء ته د تلو څخه وړاندي کومه دعا ده؟ د بيت الخلا څخه د راوتلو وروسته کومه دعا لوستل کيږي؟ د اوداسه کولو په وخت، ومسجد ته د ننوتلو په وخت، د مسجد څخه د وتلو په مهال د کور ته د ننوتلو په وخت، د ډوډۍ خوړلو څخه مخکي، د ډوډۍ خوړلو وروسته، د اذان اورېدلو وروسته، د جامي اغوستلو په وخت، په هينداري کي د کتلو په وخت، و بستر ته چي ورسي د خوب نه وړاندي، مقصد په مختلفو وختونو کي بېلا بيلي دعاګاني ښودل شوي دي کوم چي زموږ د دين اودنيا د ټولو ضرورتونولپاره ډېرجامع او ګټوري

دعاګاني دي، که موږ ټوله عمر فکر وکړو بیا هم دغه شان دعاګاني د ځانه نه سو غوښتلای کوم چي د دواړو جهانو سردار حضرت محمد ﷺ ښوولي دي.

ددې دعاګانو په لوستلو کي نه کوم وخت صرفیږي نه محنت غواړي، نه ددې لپاره اودس شرط دی نه لاس اوچتېدل شته، بس که دغه دعاګاني حفظ کړل شي نو لږ د توجه خبره ده او ددغه لږ توجه په نتیجه کي د دنیا او اخرت ستر هدفونه او ګټمي تر لاسه کېدای شي او پرته له کوم خاص محنت په اعمال نامه کي د نیکیو ذخیرې جمع کېدلای شي.

له دې امله هر مسلمان ته په کار ده چي دغه دعاګاني خامخا په یاد کړي، ډېر کتابونه داسي دي چي په هغه کي دغه دعاګاني لیکل شوي دي، حکیم الامة حضرت مولانا اشرف علي تهانوي صاحب "قُدِّسَ سِرُّهُ" کتاب "مناجات مقبول" کي هم داسي ډېري دعاګاني راټولي شوي دي د هغه نه هم دغه دعاګاني یادولای شئ، خپله یې هم یاد کړئ، او بچیانو ته یې

هم ورپه یاد کړئ په کوچنیوالي کي یې په دغه عادت اموخته کړي نو انشاء الله د هغوی د دعاګانو ثواب به هم درکول کیږي.

## د نورو لپاره دعا کول:-

څرنګه چي د خپلو حاجتونو لپاره دعا غوښتل په کار ده، دغه ډول د خپلو نورو دوستانو، قریبانو، عزیزانو او عامو مسلمانانو لپاره دعا کول هم ډیر د فضیلت شی ده، په حدیث کي راغلي دي چي کوم مسلمان بنده د خپل ورور لپاره د هغه په غیاب کي دعا کوي، نو ملکي د هغه په حق کي دعا کوي چي وتاته دي هم دغه شان ښه درکول شي. (مسلم)

له دې امله د کوم مسلمان په اړه چي درته معلومه شي چي هغه په کوم مشکل کي دی یا په کوم غم اخته دی یا کوم ضرورت وریپښ شوی دی د هغه په جق کي دعا کول په کار دي، بلکي د کافرانو په حق کي هم دعا کول په کار دي چي الله جل جلاله د اسلام هدایت ور په

برخه کړي له دې څخه د دعا ثواب هم ورکول کيږي او
د نورو د خيرخواهۍ فضيلت هم حاصليږي.

## (۴) استغفار:-

الله جَلّ جَلَالُهُ استغفار د ګناهونو د زهر تارياق ګرځولی
دی، د استغفار معنٰی ده د الله تعالٰی څخه مغفرت
غوښتل، هره بده او ناوړه ګناه کوم چې د حقوق الله
سره تعلق لري په توبه او استغفار سره معافيږي له دې
کبله کله چې کومه ګناه صغيره يا کبيره وشي نو ژر په
توبه او استغفار سره ددې تلافي کول په کار دي،
بلکې په خلاف اولٰی کارونو باندې هم استغفار کول
په کار دی او په ظاهره که کومه ګناه نه وي شوې بيا
هم استغفار کول په کار دی هر مسلمان پوهيږي چې د
دواړو جهانو سردار حضرت محمد ﷺ د ګناهونو څخه
بالکل معصوم او پاک ؤ، ددې سره دی مبارک ﷺ
فرمايي چې: زه د الله تعالٰی څخه هره ورځ تر اويا
زيات کرته استغفار کوم. (بخاري)

په یو حدیث کي د دوارو جهانود سردار ﷺ دغه ارشاد دی چي "کوم سړی د استغفار پابندي وکړي الله جَلَّ جَلَالُهُ دده لپاره په هري تنګۍ کي د اساني لاره پیدا کوي او هر غم یې لیري کوي او وده ته د داسي ځایونو څخه رزق ورکوي چیري چي دده ګمان هم نه وي.

(ابوداؤد، کتاب الصلوة باب الاستغفار)

له دې کبله په تلو راتلو، ناسته ولاړه کي هم استغفار کولو عادت جوړول په کار دي او په ورځ کي لږ تر لږ د استغفار یوه تسپیې ولوستل شي نو ډېره ښه ده.

## سَيِّدُ الاستغفار:

استغفار په هره ژبه کي کېدای شي خو ددې مختصره عربي جمله داده:

اَسْتَغْفِرُ اللهَ رَبِّى مِنْ كُلِّ ذَنْبٍ وَّاَتُوْبُ اِلَيْهِ.

**ژباړه**: "زه د الله خپل پروردګاره څخه د هري ګناه مغفرت غواړم اوتوبه کوم"خو په حدیث کي د استغفار

د يوې خاصي دعا ډېر فضائل بيان شوی دی او وهغه ته سيد الاستغفار (د استغفار سردار) ويل شوی، هغه استغفار دادی:

اَللّٰهُمَّ اَنْتَ رَبِّیْ لَااِلٰهَ اِلَّا اَنْتَ خَلَقْتَنِیْ وَاَنَاعَبْدُکَ وَاَنَا عَلٰی عَهْدِکَ وَوَعْدِکَ مَااسْتَطَعْتُ اَعُوْذُبِکَ مِنْ شَرِّ مَاصَنَعْتُ اَبُوْءُ اِلَیْکَ بِنِعْمَتِکَ عَلَیَّ وَاَبُوْءُ لَکَ بِذَنْبِیْ فَاغْفِرْلِیْ ذُنُوْبِیْ فَاِنَّهٗ لَایَغْفِرُ الذُّنُوْبَ اِلَّا اَنْتَ.

**ژباړه**: يا الله! ته زما پروردګار يې، ستا څخه پرته کوم معبود نشته، تا زه پيدا کړی يم، زه ستا بنده يم، او زه تر خپله طاقته ستا سره پر کړي وعدې او عمل باندي ولاړ يم، تا چي کوم نعمتونه ماته راکړي دي د هغه په ذريعه وتاته رجوع کوم او د خپلي ګناه په اړه هم وتاته رجوع کوم، له دې امله زما ګناه معاف کړې ولي چي ستا څخه پرته هيڅ څوک ګناهونه نه شي بخښلای.

په حديث کي راغلي چي کوم سړی دغه کلمې په بشپړ يقين سره د سهار په وخت ولولي او د ماښام څخه وړاندې وفات شي نو هغه په جنتيانو کي شمېرل کيږي او کوم سړی چي دغه کلمې د شپې په مهال په بشپړ يقين سره ولولي او د سهار څخه وړاندې وفات شي نو هغه د جنتيانو څخه دی. (بخاري باب فضل الاستغفار)

په ځانګړې توګه د شپې د خوب څخه وړاندې څو کرته د زړه په حاضرېدو سره د ورځې د خپل ټولو اعمالو د کوتاهيو اجمالي تصور کولو سره د ټولو استغفار کول په کار دي.

## (۵) ذکرُ الله:

د الله جل جلاله ذکر کول هم داسې خو ندور او اسانه عبادت دی چي هغه انسان په لږ توجه سره هر وخت کولای شي او ددې فضائل او فايدې بې شمېره دي.

الله جل جلاله په قرآن کريم کي په بېلا بيلو آيتونو کي د خپل ذکر کولو تاکيد کړی دی مثلاً ارشاد دی: يَآ اَيُّهَا

الَّذِينَ آمَنُوا اذكروا الله ذِكْرًا كَثِيرًا. (الاحزاب- ۴۱)

**ترجمه**: "اى مؤمنانو! د الله جل جلاله ذكر ډېر ډېر كوئ".

ښكاره خبره ده چې د ذكر كولو څخه و الله جل جلاله ته كومه فايده نشته، هغه د بندګانو له ذكره څخه بې نيازه دى، خو په دې كې د بندګانو ګټه ده، چې د ذكر په ډېر كولو سره د الله جل جلاله سره اړيكي ټينګيږي او د انسان و روح ته غذا وركول كيږي چې په دې سره و بنده ته تازګي او قوت پيدا كيږي، ددې روحاني قوت په نتيجه كې د انسان لپاره د نفس او شيطان مقابله اسانه كيږي او د ګناهونو څخه د حفاظت لپاره هم اساني راځي او د هر ذكر سره په اعمال نامه كې د نيكيو او ښو عملونو زياتوب راځي.

يو صحابي د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم څخه پوښتنه وكړه چې د الله جل جلاله په نيز تر ټولو افضل او د قيامت په ورځ تر ټولو اوچت مرتبې والا عبادت كوم يو دى؟ نبى صلى الله عليه وسلم ورته وفرمايل چې دالله جل جلاله ذكر. (جامع الاصول ټوك۴مخ ۴۷۵)

يو صحابي يو ځل و حضرت محمد ﷺ ته عرض وکړ چي يا رسول الله! د نيکيو قسمونه خو ډېر دي او زه دغه ټوله نه شم ادا کولای نو وماته داسي شی راوښيه چي زه يې له ځانه سره ښه وساتم او ډېري خبري مه راښيه ولي چي زما څخه هيرېږي حضرت محمد ﷺ په جواب کي ورته وفرمايل: ستا ژبه دي د الله ﷻ په ذِکر سره همېشه لنده وي.

(جامع ترمذي دعوات باب فضل الذکر)

حضرت ابوموسیٰ اشعري رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي: چي په کوم کور کي د الله ذکر وشي او په کوم کور کي چي د الله ذِکر ونه شي د هغه مثال د ژوندي او د مړي دی (يعني ذکر والا کور ژوندی دی او ذِکر چي نه کوي هغه مړ دی).

(بخاري، مسلم)

په يو بل حديث کي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی: چي کوم خلک د يو مجلس څخه په داسي حالت کي

ولاړ شي چي هغوی پکښي د الله جل جلاله ذکر نه وي کړی نو هغوی د مردار خره څخه ولاړ شوه او دغه مجلس به دده لپاره (د قيامت په ورځ) د پښېمانی باعث وي (يعني دغه افسوس به کوي چي دومره وخت موږ ولي بېکاره ضايع کړي ؤ). (ابوداؤد)

له دې کبله د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ارشاد دی: چي د هر مجلس په پای کي دغه دعا دي ولوستل شي:

سُبْحَانَکَ اَللّٰهُمَّ وَبِحَمْدِکَ لاَ اِلٰهَ اِلاَّ اَنْتَ اَسْتَغْفِرُکَ وَاَتُوْبُ اِلَيْکَ. په دې سره د مجلس د کوتاهيو کفاره ادا کېږي (نسائی)

د الله د ذکر دغو سترو فضيلتونو سره الله جل جلاله دغه مبارک عمل دومره اسانه کړی دی چي ددې لپاره هيڅ شرط نه دی ټاکل شوی، که په اوداسه سره مخ پر قبله په خلوت سره د الله ذکر وشي خو ډېر ښه دی او که ددې موقع نه وي نو په تګ راتګ ناسته ولاړه، د کار کولو په وخت په هر حالت کي دغه عبادت ادا کېدای

شي ددې لپاره اودس هم شرط نه دی بلکي د جنابت او حيض په حالت کي هم ذکر کول جایز دی.

هو د بدن د لڅوالي په حالت کي یا د مرداری په مقام کي مثلاً په بیت الخلاء کي په ژبه سره ذکر کول نه دی په کار، دغه مهال په زړه کي ذکر کول جایز دي.

له دي امله ددې عظیم عبادت ثواب انسان هر وخت پرته له کوم خاص محنت او تکلیف لاس ته راوړلای شي او مناسبه داده چي په شپه او ورځ کي څه وخت داسي وټاکل شي چي پکښي ښه په اوداسه مخ پر قبله په توجه سره ذکر وشي او په نورو وختونو کي په تګ راتګ، د کارونو په منځ کي د ویدېدو او ناستي په حالت کي څومره چي د ذکر کولو توفیق وشي نعمت بالای نعمت دی د خاص خاص ذکرونو لپاره د لاندي کتابونه مطالعه ګټوره ده:

د ذکر فضائل: شیخ الحدیث حضرت مولانا محمد زکریا صاحب رحمه الله.

ذکر الله: مفتی اعظم حضرت مولانا مفتی محمد

شفيع صاحب قدس سرّه.

معمولات يوميه: سيدي وسندي حضرت ډاکټر محمد عبدالحی عارفي قدس سرّه.

څه مختصر اذکار په لاندي ډول دي په تلو راتلو او هر وخت کولو عادت په کار دی.

په حديث کي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی: چي د الله جل جلاله په نيز تر ټولو خوښ څلور کلمې دی: سُبْحَانَ اللهِ وَالْحَمْدُ للهِ ولااله الاَّ اللهُ والله اَكْبَرُ (بخاري ومسلم)

حديث شريف دی چي دوې کلمې و رحمٰن ته ډيري خوښي دي پر ژبه باندي سپکي دي، او د عمل په ترازو کي ډيري درنې دي.

سُبْحَانَ اللهِ وَبِحَمْدِهِ، سُبْحَانَ اللهِ الْعَظِيْمِ.

(بخاري، مسلم)

په حديث شريف کي راغلي دي چي لاحول ولاقوة الاَّ بالله. ډير ولولئ ولي چي دغه د جنت د خزانو څخه يوه خزانه ده. (مشکوٰة)

لَااِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهُ لَاشَرِيْكَ لَهُ لَهُ الْمُلْكُ وَلَهُ الْحَمْدُ وَهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ.

په حديث كي راغلي چي كوم سړى د سهار په مهال دغه كلمه ولولي نو وهغه ته د اسماعيل عليه السلام د اولادو څخه د لسو غلامانو د ازادولو ثواب وركول كيږي، لس نيكۍ ورته ليكل كيږي، لس ګناهوي يي معافيږي، لس درجي يې اوچتيږي او تر ماښامه هغه د شيطان له شره خوندي پاته وي او دغه كلمه كه ماښام ولولي نو تر سهاره دغه فايدي حاصلولاى شي.

(ابوداؤد)

حسبي اللّٰه لا اِلٰهَ اِلَّا هُوَ تَوَكَّلْتُ وَهُوَ رَبُّ الْعَرْشِ الْعَظِيْمِ.

## (٦) درود شريف:-

پر حضرت محمد ﷺ د درود شريف د ويلو دومره فضايل په احاديثو كي راغلي چي يو مستقل كتاب

جوړېدای شي او د ډېرو علماء پر دې باندې بېل کتابونه ليکلي دي، په يو حديث کې حضرت محمد ﷺ ارشاد فرمايي: چې وماته زما د پروردګار له لوري يو راتلونکی راغلی او راته ويې ويل: چې ستا د امت کوم څوک چې پر تا باندې يو ځل درود ولولي الله ﷻ د هغه لپاره لس نيکۍ ليکي، لس ګناهوي (صغيره) يې معافيږي او لس درجې يې اوچتېږي. (سنن نسائی، مسند احمد، الترغيب للمنذري جلد ۳ صفحه۱۵۷)

او حضرت انس رضي الله عنه فرمايي: چې حضرت محمد ﷺ ارشاد فرمايي: د کوم چا په وړاندې چې زما يادونه وشي هغه ته په کار ده چې پر ما درود ولولي او کوم څوک چې پر ما يو ځل درود وايي الله ﷻ ورباندې لس ځله رحمت کوي (ايضا).

په درود شريف کې تر ټولو افضل ابراهيمي درود دی کوم چې په لمانځه کې لوستل کيږي او تر ټولو مختصر بيا "صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمْ" دی له دې څخه هم د

درود شریف فضیلت حاصلیږي کله چي د حضرت محمد ﷺ نوم مبارک لیکل کیږي نو بشپړه جمله صلی الله علیه وسلم پوره لیکل په کار ده فقط صلعم یا ص لیکل کفایت نه کوي.

## (۷) شکر:-

د الله جل جلاله بې شمیره نعمتونه هر کړی پر انسان باندي مصرفیږي دغه نعمتونه دومره ډېر دي چي حساب یې امکان نه لري، په قرآن کریم کي د الله جل جلاله ارشاد دی:

وَاِنْ تَعُدُّوْا نِعْمَتَ اللهِ لَاتُحْصُوْهَا. (النحل- ۱۸)

**ترجمه** : "او که تاسي د الله نعمتونه شمېرل وغواړی نو شمېر به یې نه کړی"

شیخ سعدي رحمة الله علیه فرمایلي دي که نور نعمتونه پرې بنول شي نو صرف د ژوند نعمت دومره بې شمیره دی چي په هره سا او نفس کي دوه نعمتونه پټ دي سا و دننه ته تلل یو نعمت او بهر ته راتلل بل نعمت دی

ولي كه سا دننه ولاړه شي وبهر ته را نشي نو غم دی او
كه بهر ته راشي دننه ولاړه نشي نو بل غم دی له دې
كبله په هره سا باندي و انسان ته دوه نعمتونه وركول
كيږي او هر نعمت د شكر غوښتنه كوي له دې امله كه
په هره سا باندي انسان يو ځل شكر ادا كړي بيا هم
صرف د سا د نعمت شكر نه شي ادا كولای د نورو بې
شمېره نعمتونو څرنګه شكر ادا كولای شي.

مقصد داچي د الله ﷻ د نعمتونو په صحيح طريقه
شكر ادا كول خو د انسان د وس خبره نه ده خو د بر
شكر ادا كول يو بې انتها محبوب عمل دی چي
وربانـدي ثواب هم بې شمېره وركول كيږي، په
نعمتونو كي هم د برښت راځي، او د الله ﷻ سره په
تعلق اومحبت كي هم ترقي كيږي د الله ﷻ ارشاد دی.

فَاذْكُرُوْنِىْ اَذْكُرْكُمْ وَاشْكُرُوْا لِىْ وَلَاتَكْفُرُوْنِ.

(البقره ۱۵۲)

**ترجمه** : " نو تاسي زما ذكر وكړئ زه به ستاسي

ذکر وکړم او تاسي زما شکر ادا کړئ او زما ناشکري مه کوئ"

په بل مقام کي ارشاد دی:-

وَسَنَجْزِی الشَّاكِرِيْنَ. (آل عمران ۱۴۵)

**ترجمه**: "او مونږ وشکر کوونکو ته ښه بدله ورکوو".

او بل ارشاد دی:-

لَئِنْ شَكَرْتُمْ لَاَزِيْدَنَّكُمْ وَلَئِنْ كَفَرْتُمْ اِنَّ عَذَابِی لَشَدِيْد. (ابراهيم، ۷)

**ترجمه**: "که تاسي شکر ادا کړی زه به نور زیاتوب ورکړم او که ناشکري کوی نو دا یاد ولري چي زما عذاب خامخا سخت دی"

و الله جل جلاله ته شکر ادا کوونکی بنده ډیر محبوب دی او ناشکره انسان ډیر ناخوښه دی، ولي چي ناشکري ډیره د تنګ نظری ښنه ده، نا شکره سړي ته که لږ تکلیف ورسي د هغه ټوله توجه و تکلیف ته وي

او ورته هغه بې شمېره نعمتونه نه ښکاري چي خاص د تکليف په حالت کي هم وربانـدي اوري او هغه لږ تکليف يې غرګرځولی وي فرياد کوي.

ددې څخه بل لوري ته د شکر ادا کوونکي ښه حال دادی چي د تکليف په حالت کي هم دده نظر د الله ﷻ پر نعمتونو باندي وي هغه پر دغه نعمتونو هم شکر ادا کوي او ورسره د تکليف د ليري کولو دعا هم کوي.

ته يې فرض کړه چي يو سړی ناروغه شوی وي اوس که هغه ناشکره وي نو هغه د الله ﷻ ټوله نعمتونه هېر کړي خپل ځان تر ټولو مظلوم او غم ځپلی وګڼي او د ناشکرۍ خبري تر خوله وباسي او که شکر ګزاره بنده وي نو د ناروغۍ د غم او پرېشانۍ سره هغه دا فکر کوي چي الله ﷻ د ژوند په ډېرو وختونو چي کوم صحت راکړی ، هغه څومره غټ نعمت دی او په دې ناروغۍ کي د ډاکترانو دواوو او پوښتونکو په صورت کي د تسلي چي کوم اسباب راته ميسره دي دا

خو مره غټ نعمت دی.

کوم خلک چي تر دې ډېر ناروغه دي د هغوی په تصور کولو سره شکر ادا کوئ چي الله ﷻ د داسي ناروغی څخه ژغورلی یم، هغه د ناروغی د لیري کولو دعا خامخا کوي خو د شکایت په لهجه کي نه بلکي د خپلي کمزوری او عاجزی په لهجه کي، هغه د تکلیف څخه پرېشانه وي او په دې پرېشاني کي د ناشکری او ګیلې شکایت بوی نوي پکښي.

پر انسان باندي د شیطان تر ټولو غټه حمله دا وي چي په ناشکري يې بوخت کړي، په قرآن کریم کي راغلي چي کله و شیطان ته تر قیامته پوري د ژوند مهلت ورکول شو نو ده د الله ﷻ په حضور کي خپل دغه عزم څرګند کړ چي زه به ستا بندګان غولوم (خطا باسم) او د هري لوري به ورباندي حمله کوم بیا يې د دې نتیجه بیانولو کي دا هم څرګنده کړه چي:

وَلَا تَجِدُ اَكْثَرَهُمْ شَاكِرِيْنَ. (الاعراف- ١٧)

**ترجمه** : "او ډېر د بندګانو څخه به شاکره ونه موندې".

له دې څخه وبرېښېده چې د شیطان تر ټولو ستره غوښتنه او هڅې دادي چې د الله ﷻ د بندګانو د شکر د عبادت څخه محرومه کړي هغوی ناشکره وګرځوي ددې په خلاف کوم بنده چې شاکره جوړېدلو عزم وکړي پر هغه د شیطان وار نه چلیږي.

غرض د الله ﷻ شکر اداکول ډېر عظیم عبادت دی او دغه ستر عبادت په څو سیکنډو کې ادا کیږي په حدیث کې دي چې:

اَلطَّا عِمُ الشَّاكِرُ بِمَنْزَلَةِ الصَّائِمِ الصَّابِرِ.

**ترجمه** : "کوم سړی چې ډوډۍ خوړلو سره شکر ادا کړي هغه په ثواب کې د هغه روژاتي په شان دی" کوم چې د ډوډۍ خوړلو څخه یې صبر کړی دی.

(بخاري ترمذي)

له دې امله د شپې او ورځې په ژوندانه کې کوم

کوچنی یا غټ نعمت او راحت درکول شي پر دې د شکر ادا کولو عادت ګرځول په کار دی، کور ته ننوتې کوروالا دي په عافیت کې ولیدل نو شکر ادا کړه، ښه خورک درته راوړل شي نو شکر ادا کړه که ښه هوا در نه ولګیږي نو شکر ادا کړه. بچي دي لوبي کولې ښه معلوم شو نو شکر ادا کړه.

مقصد دا چي هره خبره چي ور څخه خوشحالي یا راحت تر لاسه شي پر هغه باندي د شکر ادا کولو او د تل لپاره د ادا کېدو عادت جوړول په کار دي، که په ژبه سره نه وي نو په زړه کي شکر ادا کول په کار دی.

دغه ډول د طریقت بزرګانو دا هم ښوونه کړې ده چي کله د شپې وبستر ته ورسې نو د خوب څخه وړاندي یو ګړی د الله جَلَّ جَلَالُهُ د نعمتونو تصور وکړه او د یوه یوه نعمت تصور کوه شکر وربادي ادا کوه مثلاً باید تصور وکړې چي الحمد لله زما او د کوروالا او بچیانو صحت جوړ او روغ دی الحمد لله د سر پټولو لپاره کورلرم الحمد لله! ارامه بستره لرم، الحمد لله ځان

او مال مي خوندي دی.

مقصد ځو مره راحتونه چي درکول شوي وي د دغو ټولو حساب وکړه تصوريي وکړه او شکر ورباندي ادا کړه بيا نو ويده شه.

په دې کي ځو شک نشته چي د الله جل جلاله د نعمتونو حقيقي شکر دادی چي انسان خپل ژوند د الله جل جلاله د مرضي سره سم جوړ کړي ځو که په ژبه او زړه سره ډېر ډېر د شکر ادا کولو عادت وګرځوي نو دا هم يو ستر عبادت دی او اميد دی چي انشاء الله د دې له برکته د نورو اعمالو هم اصلاح وشي.

هسي ځو د شکر ادا کولو لپاره کوم لفظ نه دی معين شوی هر انسان په خپله ژبه کي شکر ادا کولای شي، ځو حضرت محمد ﷺ د شکر د ادا کولو لپاره د داسي جامع الفاظو تلقين کړی چي په يو ځل لوستلو د زرګونو واري شکر ادا کولو فايده لاس ته راتلای شي هغه الفاظ دادي:

اَللهُمَّ لَکَ الحمدُ حَمْدًا دَائمًا مَّعَ دَوَامِکَ وَلَکَ الْحَمْدُ حَمْدًا خَالدًا مَّعَ خُلُوْدِکَ وَلَکَ الْحَمْدُ حَمْدًا لَامُنْتَهٰی لَهُ دُوْنَ مَشِیّتِکَ وَلَکَ الْحَمْدُ حَمْدًا لَایُرِیْدُ قَائلُهُ اِلَّا رِضَاکَ وَلَکَ الْحَمْدُ حَمْدًا عِنْدَ طَرْفَةِ کُلِّ عَیْنٍ وَتَنَفُّسِ کُلِّ نَفَسٍ.

**ترجمه** : "ای الله! ستا شکر دی، داسي شکر چي ستا د همیشني وجود سره همېشه دی، ستا شکر دی، داسي شکر چي ستا د همېشه پاته کېدلو سره همېشه وي او ستا شکر دی داسي شکر چي ستا د ارادې څخه پرته بل کوم پای نشته او ستا شکر دی داسي شکر چي د هغه لوستونکي ستا د خوشحالۍ پرته بل هیڅ نه غواړي او ستا شکر دی د سترګي د هر اړه ولو باندي او د سینې پر هري سا باندي".

اَللهُمَّ لَکَ الْحَمْدُ عَدَدَ خَلْقِکَ وَمِدَادَ کَلِمَاتِکَ وَزِنَةَ عَرْشِکَ وَرِضَا نَفْسِکَ.

**ترجمه** : ای الله! ستا حمد ادا کوم ستا د مخلوقاتو د شمېر برابر او ستا د کلماتو د سیاهي برابر، او ستا د عرش د وزن برابر او ستا د رضا او خوشحالۍ برابر.

د حضرت عبدالله بن غنام رضي الله عنه څخه روایت دی چي حضرت محمد ﷺ د شکر دغه کلمي ورونبوولې:-

**اَللّٰهُمَّ مَا اَصْبَحَ بِیْ مِنْ نِّعْمَةٍ اَوْبِاَحَدٍ مِّنْ خَلْقِکَ فَمِنْکَ وَحْدَکَ لَاشَرِیْکَ لَکَ فَلَکَ الْحَمْدُ وَلَکَ الشُّکْرُ.**

**ترجمه** : ای الله! وماته یا ستا د مخلوق ویو فرد ته هم کوم نعمت ورکول شوی وي هغه فقط ستا د لوري څخه وي، ستا هیڅ شریک نشته نو تعریف تا لره ثابت دی او شکر دي تا لره وي.

حضرت محمد ﷺ فرمایلي: چي کوم سړی دغه کلمي د سهار په وخت ولولي هغه د خپل ورځي شکر ادا کړ او کوم سړی چي دغه کلمي د ماښام په مهال ولولي هغه د شپې شکر أدا کړ. (نسائی، ابوداؤد)

## (۸) صبر: -

الله ﷻ په دې کائناتو کي درې ډوله مخلوق پیدا کړي دي، یو هغه مخلوق چي پکښي بشپړه خوشحالي او ارامتیا شته، د غم او د تکلیف هیڅ څرک پکښي نشته، دا د جنت مخلوق دی.

دوهم هغه چي پکښي ټوله سره تکلیف او غمونه دي، په دې کي د خوشحالۍ او ارام هیڅ نښه پکښي نشته، دا د دوزخ مخلوق دي او یو مخلوق هغه دی چي په هغه کي خوشحالي هم شته او غم هم شته، راحت هم شته او تکلیف هم او دا د دنیا مخلوق دی.

له دې کبله په دې دنیا کي تر ننه نه کوم انسان داسي شوی دی نه هم کېدای شي چي ورته کله ناکله کوم نه یو کوم تکلیف نه وي رسېدلی، انسان چي څومره دولت مند وي، څومره صاحب د اختیار وي، څومره صالح او متقي وي، وده ته به په دنیا کي د خوشحالۍ سره د غم او د ارام نه وروسته به د تکلیف

سره خامخا مخامخ کیږي غټ غټ پېغمبران هم د تکلیفونو او غمونو سره مخامخ شوي دي.

له دې کبله که کوم سړی وغواړي چي ما ته په خپل ژوند کي کوم تکلیف یا غم را ونه رسیږي نو هغه د دې دنیا د حقیقت څخه نا خبره دی. د هغه د دغه غوښتنه هیڅکله نه شي تر سره کېدای. د لږ او ډېر توفیر خو به خامخا وي، خو د تکلیف او غمونو څخه بشپړ خلاصون په دې دنیا کي ناممکنه ده.

قیدحیات وبند غم اصل مې دونوں ایک ہیں
موت سی پہلی آدمي غم سی نجات پائے کیوں؟

"د ژوندانه بند وي او که د غم خو په حقیقت کي دواړه سره یو دي، د مرګ څخه مخکي انسان به له غم نه ولي خلاصون ومومي".

له دې امله په دغه دنیوي ژوندون کي هر سړی په یو نه یو صورت کي د تکلیفونو او غمونو سره به مخامخ کیږي، که چیري هغه بې صبري وکړي، هر وخت

بې ځایه د خپلو غمونو بیان کوي، او د خپل تقدیر ګله او شکایت وکړي، بیا هم ورته د غمونو څخه بشپړ خلاصون نه شي کېدای، خو په دغه صورت کي یو خو هغه همېشه همېشه د تکلیف په غم به بوخت وي، دوهم ددې بې صبرۍ له برغه تاوان دادی چي دغه تکلیفونه چي ورته د اجر او ثواب ذریعه ګرځېدله د هغه هیڅ ثواب نه ورکول کیږي.

ددې په خلاف یو انسان هغه دی چي د تکلیف او غم په موقع کي دغه فکر کوي چي دا د دنیا د یو څو ورځو تکلیف دی، او د دنیا د تکلیفونو څخه هیڅ څوک هم بشپړ نه شي خلاصېدای، او د الله ﷻ هیڅ یوه فیصله د حکمت څخه خالي نه ده.

برابره خبره ده چي د هغه حکمت زموږ په پوهنه کي راشي یا نه شي را نو ماته د الله ﷻ د فیصلي څخه د شکایت پر ځای د هغه پر حقانیت باندي ایمان لرل په کار دی، که څه هم ددغه تکلیف او پیښې څخه ماته تکلیف رسېدلی دی،ددې تکلیف له کبله زما زړه صبر

کوي، خو زه د الله ﷻ د فیصلې څخه کوم شکایت نه کوم، ولي چي هغه پوهیږي چي زما ښه په کوم شي کي دي؟ زه د هغه ولوري ته رجوع کوم کوم تکلیف چي ماته رارسېدلی دی هغه زما په حق کي ښه کړي، زما وزړه ته ارام او تسلي ورکړي او آینده ما ددغه شان تکلیفونو څخه وساتي کوم چي ما نا قراره کوي.

ددغه سړی د داسي فکر نوم "صبر" دی او ددې فایده داده چي له دې نه و انسان ته تسلي ورکول کیږي په ناقراري کي لږ والی راځي، زړه ته آرام ورکوي او بل لوري ته چي کوم تکلیف رسېدلی وي پر دې باندي د الله ﷻ له لوري بې حسابه اجر ورکول کیږي.

د قرآن کریم ارشاد دی:

اِنَّمَا يُوَفَّى الصَّابِرُوْنَ اَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَاب.

(الزمر-۱۰)

**ژباړه**: بېشکه وصبر کوونکو ته د هغوی ثواب بې

شمېره ورکول کيږي.

دا ياد ولرئ، د يو تکليف په وخت په زړه کي چي کوم تکليف پيدا کيږي دا کومه ګناه نه ده، بلکي د تکليف او غم په مهال بې اختياره که ژړا ورشي هغه هم په بې صبرۍ کي نه راځي، بې صبري داده چي د الله ﷻ پر فيصلې اعتراض وکړي او شکايت وکړي که په زړه کي د تکليف اور بل وي د سترګو څخه اوښکي بهيږي، طبيعت پرېشانه وي، ډېره ډېره ژړا ورځي خو انسان د الله ﷻ د تقدير د شکايت کولو ير ځاى د الله ﷻ پر حکمتونو ايمان لري نو ددغه نوم "صبر" دى او پر دې باندي د الله ﷻ له لوري د بې حسابه اجر وعده ده.

دې صبر نښه داده چي هر کله په زړه کي تکليف وشي انسان په ژبه ولولي: اِنَّا لِلّٰهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ.

کوم خلک چي د تکليف په مهال دغه کلمه ولولي د هغوى په باب د الله ﷻ ارشاد دى:

أولئـک عَلَـیْهِمْ صَـلَوَاتٌ مِـنْ رَبِّهِـمْ وَرَحْمَـةٌ وَ أُولئِکَ هُمُ المُهْتَدُونَ. (البقرة- ۱۵۷)

**ژبـاړه**: پـه داسـي خلګو بانـدي د دوی د رب لـه لوري رحمتونه او مهرباني دي او دغـه شان خلګ پـه هدايت باندي دي.

له دې امله بزرګانو بالکل صحيح فرمايلي دي: چي "صبر" د زرګونو عبادتونو څخه يو عبادت دی، چي پـه دې سره انسان روحاني ترقي کوي او تر ډېرو اوچتو مقاماتو پوري رسيږي.

او د صبر د عبادت لپاره دا ضروري نه ده چي کوم غټ تکليف ورپېښ شي بيا نو انسان صبر وکړي او إِنَّا لِلّهِ وَاِنَّا اِلَيْهِ رَاجِعُوْنَ. ووايي بلکي هره ورځ پـه ژوند کـي کـومي وړوکـي وړوکـي خبـري د طبيعت خـلاف پېښيږي پر هغوی باندي هم د لوستلو عادت پـه کار دی حضـرت ام سـلمه رضـی الله عنهـا فرمـايي: چـي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی:

اذَا اَصَابَتْ اَحَدُكُمْ مُصِيْبَةٌ فَلْيَقُلْ انا لله وَاَنَّـا اِلَيْـهِ رَاجِعُوْنَ. اَللهُمَّ عِنْدَكَ اَحْتَسِبُ مُصِيْبَتِى وَاَجِرْنِى فِيهَا وَابْدِلْنِى خَيْرًا مِّنْهَا.

يعني هر كله له تاسي څخه ويو چا ته كوم تكليف ورسيږي نو هغه ته په كار ده چي اِنَّـا لله وَاِنَّـا اِلَيْـهِ رَاجِعُـوْنَ ولولي، يـا الله زه پر دغـه تكليف بانـدي د ثواب غوښتونكى يم، ما تـه پر دي ثـواب راكړې او ددې پر ځاى ما ته تر دې ښه شى راكړې.

(ابوداؤد، باب الاسترجاع)

له دې نه معلومه شوه چي پر كوچني تكليف باندي هـم انـا لله لوسـتل پـه كـار دي او دغـه ډول هـره ورځ پېښېدونكي د طبيعت خلاف كارونو باندي هر ځل د "صبر" د عبادت ثواب وركول كيږي، د تـګ پـه حالـت كي كه زوز ورجـګ شو، لمن يـې يو ځـاى بنده شـول، ښـه يـې وښـويدل برق (بجلـي) ولاړه، د يـو غمجنـي پېښي خبر يـې واورېدى، كوم شى ورك شو، مطلب دا

چي دغه شان د هري پيښي په وخت انا لله لوستل پكار دي او يو ځل په زړه كي دغه عقيده ټينګول په كار ده چي د هر تكليف تر شا د الله ﷻ كوم نه يو كوم حكمت شته، بس ددغه نوم "صبر" دى او پر دې همېشه بې شمېره ثواب وركول كيږي.

يوه بله خبره هم د يادولو وړ ده چي څرنګه د يو غم پر مهال بې اختياره ژړل د صبر خلاف نه دى دغه ډول د يو تكليف پر مهال دغه تكليف ليري كولو هڅي او كوښښ كول هم د صبر خلاف نه دى مثلاً د ناروغۍ علاج كول د صبر خلاف نه دى ، بلكي دغه ټوله كوښښونه كول هم په كار دي او د تكليف د ليري كولو دعا هم په كار ده، بلكي د تكليف د سختۍ په حالت كي آه آه كول هم د صبر خلاف نه دى، ولي چي د صبر حقيقت صرف دغه دى كوم چي اوس درته بيان شو چي انسان د الله ﷻ پر فيصلې كوم اعتراض او شكايت ونه كړي او په ژبه انا لله وانا اليه راجعون همېشه

ولولئ.

هسي خو دغه يو مختصر عمل دی، لیکن د الله ﷻ په دربار کي چي پردي کوم اجر او ثواب ليکل کیږي، ددې تصور هم دغه وخت زموږ لپاره ناممکنه خبره ده.

## (۹) په "بسم الله" سره هر مهم كار پيل كول:

هر مهم کار په "بسم الله" سره پیل کول د اسلامي شعائرو څخه دی چي ورباندي مسلمان پېژندل کیږي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی:

كُلُّ اَمْرٍ ذِی بَالٍ لَمْ يُبْدَأ فِيْهِ بِبِسْمِ اللهِ فَهُوَ اَبْتَرُ.

"هر مهم کار چي په بسم الله سره پيل نه شي هغه ناقص او پري وي" د حضرت محمد ﷺ سنت دادی چي د هر مهم کار څخه وړاندي بسم الله خامخا لوستل، هر مسلمان ته په كار ده چي ددغه سنت په متابعت کولو

سره په بسم الله سره د كار پيل كولو عادت وګرځوي ، كور ته د ننوتلو په وخت، بلكي د روان موټر سره د ټكر په وخت يا خپله ټكر شي، و مسجد ته د ننوتلو په وخت، د مسجد څخه د وتلو په وخت، بلكي و بيت الخلا ته د ننوتلو څخه لږ وړاندي او د هغي څخه د وتلو څخه ژر وروسته، د ډوډۍ خوړلو په وخت د اوبو څښلو په وخت، د جامې د اغوستلو په وخت د بوټو په پښو كولو په وخت د كوم كتاب لوستلو په وخت، د كوم مكتوب ليكلو په مهال د خپل كاروبار پيل كېدو څخه مخكي، د يو چا سره د نوي معاملې كولو څخه وړاندي مطلب په هر تبديل شوي حالت باندي په بسم الله سره د پيل كولو عادت ګرځول په كار دي.

دغه ډول ښځي چي ډوډۍ پخول شروع كړي نو دي بسم الله ولولي، په خوړك كه كوم شى واچوي نو دي په بسم الله سره واچوي. كله چي سالن راكاږي نو دې په بسم الله سره راوكاږي، كه كومه جامه رغوي يا يې پرېولي نو دې په بسم الله سره پيل كړي، بچيانو ته

کالي وراغوندي نو دي په بسم الله سره ورواغوندي او هغه ته دي هم بسم الله وروښيي، مقصد دا چي دغه رنګه خپل د ورځني کارونو په بسم الله سره پيل کول په خپل معمولات کي راوستل شي نو دا يو داسي عمل دی چي پکښي محنت او سختي هيڅ نشته او په لږ فکر کولو سره انسان په خپل اعمال نامه کي د نيکيو او ښه عملونو زياتوب کولای شي، بلکي ددغه عمل په برکت سره دغه واړه کارونه چي په ظاهره دنيوي کارونه بريښي ټول عبادت ګرځي.

يو کافر هم د دنيا کار کوي او يو مؤمن يې هم کوي ليکن په دواړو کي دومره زيات توپير شته چي کافر د غفلت په حالت کي دغه ټوله کارونه کوي او مؤمن د هر کار شروع په بسم الله سره کوي، لکه ددې خبري اقرار چي کوي چي د الله جل جلاله د توفيق څخه پرته د هيڅ کار بشپړيده او پوره کېده نه شي کېدای او ددې اقرار په نتيجه کي دده د دنيا ټوله کارونه هم د دين يوه برخه او عبادت ګرځي.

د بسم الله پر فضائلو باندي د احقر بزرگواره پلار حضرت مولانا مفتی مُحمَّد شفیع صاحب رحمة الله علیه رساله "د بسم الله فضائل او مسائل" مطالعه به کړوره وي.

## (۱۰) په سلام سره پیل کول:-

و مسلمانانو ته سلام کول هم د هغو د اسلامي شعائرو څخه دی کوم چي مسلمانان په پېژندل کیږي او ددې ډېر فضائل په احادیثو کي راغلي، په ځانګړې توګه بیا ویو مسلمان ته په سلام سره شروع کول ډېره ستره نیکي ده، په حدیث کي راغلي دي چي په خلکو کي و الله جل جلاله ته نژدې هغه سړی دی چي و خلګو ته په سلام کولو سره پیل وکړي. (ابوداؤد)

دا ضروري نه ده چي فقط وهغو خلګو ته سلام وشي کوم چي ورسره پېژند نه وي، بلکي چي څوک نه ورسره پېژني د هغوی مسلماني معلومه وي هغوی ته سلام کول هم د ثواب عمل دی، یو سړي د حضرت

محمد ﷺ څخه وپوښتل چي د مسلمان لپاره کوم عملونه ښه دي؟ ددې په جواب کي محمد ﷺ چي کوم اعمال وشمېرل په هغه کي دا هم وه چي و خلګو ته سلام کول په کار دی (برابره خبره ده) چي ته يې پېژنې او که يې نه پېژنې. (بخاري، مسلم)

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت شوی دی چي کله کله هغه د کوره فقط ددې مقصد لپاره وتی چي کوم مسلمان وويني نو ورته سلام وکړي چي دغه ډول به دده په ښو عملونو کي ډېرښت او زياتوب وشي. (موطا امام مالک)

ددې حديث صحيح مطلب دادی: چي و خلګو ته ډېر ډېر سلام وشي، هر ليدونکي سړي ته سلام کول مقصود نه دی ولي چي عملاً داسي امکان لري او له دې څخه و خلګو ته تکليف هم رسېدلای شي.

(الاداب الشرعية لابن مصلح ټوک ۱ مخ ۴۲۲)

دا هم سنت عمل دی چي کله سړی د بهر څخه وکورته راشي ، نووکور والاؤ ته سلام وکړي، حضرت

محمـد ﷺ خپـل وخـاص خـادم حضـرت انـس رضي الله عنه تـه وفرمايل: بچيه! چي کله کور تـه ننوزي نو وهغوی تـه سلام کوه، دغه عمل ستا او ستا د کور والاؤ لپاره د برکت باعث دی. (ترمذي)

بلکي که و يو خالي کور ته ځوک ورننوزي نو دغه وخت هم سلام کول په کار دی او نيت دي دا وکړي چي دغه سلام وملائکو تـه کيږي او حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه به په داسي وخت کي السَّلامُ عَلَيْنَا وَعَلٰى عِبَادِ اللهِ الصَّالِحِيْنَ ويل.

(الاداب الشرعية لابن مصلح ټوک ۱ مخ ۴۲۴)

په حديث کي ددې هم ترغيب راغلی دی چي سلام په ښکاره لفظونو کي دغه ډول داسي چي وفهمول شي که څه هم د سلام سنت صرف السلام عليکم ويلو سره ادا کيږي خو کـه ورسره "وَرَحْمَـةُ اللهِ وَبَرَكَاتُـهُ" هم زيات شي نو ډېر ثواب لري.

حضرت عمران بن حصين رضي الله عنه فرمايي: چي موږ يو

ځل د حضرت محمد ﷺ په خدمت کې حاضر ؤ يو صاحب راغلی او السلام عليکم سره يې سلام وکړ، حضرت محمد ﷺ جواب ورکړی او ويې فرمايل: چې لس نيکي يې تر لاسه کړې بيا يو بل څوک راغلی او هغه السلام عليکم ورحمة الله وويل نبی عليه السلام جواب ورکړی او ويې فرمايل: چې شل نيکی يې ومونډلې بيا يو بل صاحب راغلی او هغه "السَّلامُ عَلَيْكُمْ وَرَحْمَةُ اللهِ وَبَرَكَاتُهُ" سره يې سلام ادا کړ حضرت محمد ﷺ جواب ورکړ چې دېرش (يعني دېرش نيکي يې وګټلې). (ابوداؤد، ترمذي جامع الاصول ټوک ۶ مخ ۶۰۲)

دلته دغه خبره د يادوني وړ ده چې سلام کول هغه ځا ته سنت دی چې کله يو سړی په خپل يو کار بوخت نه وي، خو که دده په کار کې ستونزې راځي نو داسې وخت سلام ورته کول صحيح نه دی، مثلاً يو سړی تلاوت يا ذکر کوي يا د يو ناروغه په پوښتنه بوخت وي يا مطالعه کوي يا په يو بل داسې کار بوخت دی

چي د توجه اړولو څخه يې د تاوان اند یښنه وي نو تر څو چي هغه فارغه نه شي سلام کول سمه خبره نه ده.

دغه ډول که يو سړی و يوې ټولني ته تقرير يا بيان کوي او خلگ يې خبره اوري نو په داسي مهال و تقرير كوونكي يا اورېدونكي ته سلام كول نه دي په كار، هو كه خلگ پټه خوله ناست وي او يو څوك نژدې ورته ورشي يا په مجلس كي كښيناستل وغواړي ، نو يو ځل سلام وكړي او له حاضرينو څخه كه يو هم جواب وركړي نو د سلام سنت او د سلام د جواب فريضه ادا شوه، د سلام پيل كول سنت دي خو كه يو څوك سلام وكړي نو يې جواب وركول واجب دي او كه يو څوك د سلام جواب ورنه كړي نو گنهگاره كيږي.

دغه رنگه كه د يو چا مكتوب راشي او پكښي "السلام عليكم" ليكل شوي وي نو د لوستلو په وخت د سلام جواب وركول په كار دی. (شرح مسلم نووي)

## (۱۱) د ناروغه پوښتنه:-

د ناروغه سړي پوښتنه هم د ډېر اجر او ثواب عمل دی او حضرت محمد ﷺ د هر مسلمان په ذمه د بل مسلمان چي کوم حقوق ټاکلي دي په هغه کي د ناروغه پوښتنه هم راځي، بعضي فقهاؤ واجب ګڼلی، خو صحيح داده چي د ناروغه پوښتنه سنت ده.

د حضرت ثعبان رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي: چي کله يو مسلمان د خپل مسلمان ورور د ناروغی پوښتلو لپاره روان وي نو هغه د جنت په باغ کي او سيږي.

(صحيح مسلم، کتاب البر والصلة، ترمذي کتاب الجنائز)

حضرت علي رضي الله عنه فرمايي: چي ما د حضرت محمد ﷺ څخه اورېدلي دي چي: کوم مسلمان د سهار په وخت د يو بل مسلمان وپوښتني ته ورشي، نو تر ماښامه اويا زره ملکي دده لپاره د خير دعا کوي او که ماښام د يو چا و پوښتني ته ورشي نو تر راتلونکي سهاره ورته

اویا زره ملکي دده په حق کي د خیر دعا کوي او ورسره د جنت یو باغ ورکول کیږي.

(ترمذي، کتاب الجنائز حدیث ۹۶۹)

د حضرت محمد ﷺ همېشه عادت ؤ چي د خپل متعلقینو څخه کله چي د یو چا د ناروغۍ خبر ورته رسېدلی وای، نو د هغه د پوښتني لپاره به یې تشریف وروړی.

د ناروغه د پوښتني له ادابو څخه داده چي د مریض پر تندي لاس کښېږده حالت یې وپوښته، په دې شرط چي د لاس ایښولو یا حالت پوښتلو څخه ورته تکلیف نه وي، که د تکلیف اندېښنه وي نو لاس ایښوول نه دی په کار او نه دې حالت معلوموي، په داسي حالت کي د ناروغه د نژدې خلګو نه خیریت معلومول کفایت کوي.

حضرت محمد ﷺ د ناروغه د پوښتني په وخت اووه ځله د دې دعا لوستلو تلقین کړی:

اَسْأَلُ اللّٰهَ الْعَظِیْمَ رَبَّ الْعَرْشِ الْعَظِیْمِ اَنْ یَّشْفِیَکَ

**ترجمه**: هغه الله چي خپله عظيم دی، او د عظيم عرش مالک دی. زه د هغه څخه سوال کوم چي وتاته شفا درکړي".

حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: چي د کوم سړي د مرګ وخت نه وي رارسيدلی هغه ته د دغي دُعا له برکته الله ﷻ شفا ورکوي.

(ابوداودکتاب الجنائز، ترمذي کتاب الطب)

حضرت محمد ﷺ د ناروغه د پوښتني په مهال به د پر دغه دُعا هم لوستل:

اَذْهَبِ الْبَأْسَ رَبَّ النَّاسِ وَاشْفِ اَنْتَ الشَّافِیْ لَاشِفَاءَ اِلَّا شِفَاءُكَ لَايُغَادِرُ سَقْمًا۔

**ترجمه**: ای د ټولو خلکو پروردګاره! تکليف ليري کړې، او شفا ورکړې ته شفا ورکوونکی يې، ستا څخه پرته څوک شفا نشي ورکولای داسي شفا ورکړې چي د ناروغی کومه برخه پري نږدي.

او دغه دُعا به يې هم کول: لَابَأْسَ طَهُوْرٌ اِنْ شَاءَاللّٰه.

**ترجمه**: ستادي كوم تاوان نه وي (دغه ناروغى) انشاءالله ستالپاره د پاكى باعث گرځي.

خو دغه خبره همېشه په ياد ولرئ چي په اسلام كي څومره فضيلتونه د ناروغه د پوښتلو بيان شوي دي، د دي ځخه زيات د دي خبري تاكيد شوى دى چي د خپل يو عمل ځخه و ناروغه ته لږ تكليف هم ور ونه رسيږي ، د كومي پوښتني ځخه چي وناروغه يا د هغه وخدمت كوونكو ته كوم تكليف ورسي د دي ځخه د ثواب پر ځاى د گناه سخته خطره ده.

دغه ډول كه د يو ناروغه لپاره د يو چا كتنه تاواني وي نو په داسي ملاقات اصرار كول بالكل ناروا دى، په داسي صورت كي د بهر ځخه د حالت معلومولو او دُعا كولو سره د ناروغ د پوښتني فضيلت حاصليږي، و ناروغه ته دخبرولو څه اړتيا نشته، كه د ناروغ زړه خوشحاله كول مقصودوي نو يې وخدمت كوونكو ته ووايه چي پر يو مناسبه وخت ناروغه خبر كړه چي فلاني سړى ستا د پوښتني لپاره راغلى ؤ او ستالپاره

دعاوي کوي.

دغه رنګه په حديث کي د دي خبري هم تاکيد شوی دی چي کوم سړی د ناروغه د پوښتني لپاره ورشي هغه دي ورسره ډېر نه کښيني، بلکي لنډه پوښتنه دي وکړي ځني ولاړ دي شي، ولي چي د ډېر کښينستلو څخه زياتره مريض په تکليف کيږي.

هو که ناروغه د خپلي تسلی يا دزړه د ډاډ لپاره يو څوک زيات کښېنوي نو دهغه په ناسته کي کوم پروانشته.

د پوښتني لپاره د مناسب وخت ټاکل هم ډېر ضروری دی په داسي وخت کي و پوښتني ته تلل صحيح نه دي کله چي د مريض د ارام يا په نورو معمولاتو او عاداتو کي کوم بدلون راشي له دي کبله دي د ناروغه د خادمانو څخه مخکي لا معلومه کړي چي د پوښتني مناسب وخت کوم يو دی؟

# (۱۲) د جنازې په لمانځه او د مړي په ښخولو کې ګډون کول:-

د يو مسلمان پر مرګ باندې د جنازې په لمانځه کې ګډون کولو او د جنازې سره په ښخولو کې د برخې اخيستلو هم په احاديثو کې ډېر فضيلت راغلی دی، بلکې دغه حضرت محمد ﷺ د مسلمان حق ګڼلی دی چې د مسلمان د مرګ په صورت کې د جنازې په لمانځه کې ګډون وشي او د جنازې سره و هديري ته ورسره ولاړشي، که څه هم د جنازې په لمانځه کې ګډون کول او د جنازې سره و هديري ته تلل فرض کفايه دي يعني که ځني مسلمانان دغه عمل تر سره کړي نو د نورو څخه فريضه ساقطيږي يعني هغوی د جنازې د نه کولو څخه نه ګنهګاره کيږي خو که څوک يې وکړي نو ډېر ثواب لري.

حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چې حضرت محمد ﷺ فرمايلي: چې يو څوک د يو چا جنازې لمونځ

اداکړي و هغه ته يو قيراط ورکول کيږي او څوک چي ورسره ولاړشي تر هغه وخته ورسره وي چي دښخېدو عمل بشپړشي نو وهغه ته دوه قيراطه ورکول کيږي چي هر قېراط د احد د غره په شان دی (۲).

معززو علماؤ فرمايلي دي چي د جنت د نعمتونو او د هغه مقام د اجر او ثواب څرنګه چي په دنيا کي صحيح تصور نشي کېدای او نه يې هم د تعبير لپاره د انسان سره صحيح لفظونه شته له دې کبله حضرت محمد ﷺ د امت د پوه کولو لپاره داسي لفظونه استعمال کړي دي کوم چي د دنيا په معاملاتو کي رواج لري او مشهوره دي، لکه څرنګه چي حضرت محمد ﷺ په جنازي کي د ګډون کولو ثواب يې په (قيراط) سره تعبير کړی دی کوم چي د سرو او سپينو زرو يو پيمانه ده خو دا يې هم ورسره وفرمايل چي دا د دنيا

(۱) دغه لفظ د جامع ترمذی په روايت کي راغلی دی (ترمذی کتاب الجنائز حديث ۱۰۴۰، باب نمبر ۱۴۹، خو اصل حديث په بخاری او مسلم کي هم روايت شوی دی.

د قیراط برابر مه ګڼئ، هغه به په خپل غټ والي کي د احد دغره برابر وي، خلاصه داده چي د جنازي د لمانځه په اداکولو باندي بیل ثواب او د جنازي سره تلل او هلته تر ښخېدو پوري ګډون کول ثواب بیا بیل دی، او دواړه ډېر غټ ثوابونه دي او د یو بل روایت الفاظ دادي:

کوم سړی چي د مړي و کور ته ورشي (د جنازي د او چتیدو څخه مخکي) هغه ته یو قیراط ورکول کیږي او بیا یې که په جنازه پسي روان شي هغه ته یو بل قیراط ورکول کیږي بیا که په لمانځه کي برخه واخلي نو یو بل قیراط بیا که تر ښخیدو پوري انتظار وکړي نو یو بل قیراط ورکول کیږي.

(فتح الباری،صفحه ۱۹۴،په حواله د مسند بزاز)

ددې مطلب دادی چي څلور سره عملونه بیل بیل نیکي او ښه عملونه دي او پر هر یوه جلا ثواب دی او هر ثواب ډېر زیات دی.

حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما ته دغه

حدیث معلوم نه ؤ کله چي د حضرت ابو هریره رضي الله عنه په ذریعه ورته معلوم شو او حضرت عائشه رضی الله عنها هم د دي تصدیق وکړ نو حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما په تأسف سره وویل یقیناً موږ خو ډېر قیراطونه ضائع کړي دي. (ترمذی)

د جنازې په لمانځه کي ډېر خلګ رسماً او د اصطلاح د مجبوری له کبله ګډون کوي او ډېر وختونه یې د جنازې د لمانځه سمه طریقه هم نه وي زده خو په لږ توجه سره د لمانځه طریقه زده کولای شي او په ګډون کي د رسمي پابندی پر ځای د الله جل جلاله د رضا نیت کول په کار دی او انشاءالله په دې باندي به ډېر اجر او ثواب ورکول کیږي لکه څرنګه چي یې بیان اوس وشو، د جنازې وروسته په جنازې پسې تلل د دې په ښخېدو کي ګډون کول یو جلا ښه عمل دی. او حضرت مجاهد رحمة الله علیه فرمایې: چي دغه عمل تر نفلي لمانځه افضل دی.

(فتح الباری صفحه ۱۹۳، ټوک ۳، په حواله د مسند عبدالرزاق)

## (۱۳) فاتحه (تعزیت) او وغم ځپلي ته تسلي ورکول:-

د يو سړي پر مړينه باندي د هغه و کور والا وته تعزيت کول او په خپل يوه خبره يا يو عمل سره و هغه ته تسلي ورکول هم ډېر غټ د ثواب کار دی، د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي:

مَنْ عَزّٰى مُصَاباً فَلَهُ مِثْلُ اَجْرِهِ.

**ترجمه**: کوم څوک چي وغمجن ته تعزيت (تسلي) ورکړي هغه ته دومره ثواب ورکول کيږي لکه څومره چي وغم ځپلي ته پر دغه غم ورکول کيږي.

(جامع ترمزی، کتاب الجنائز حديث نمبر ۱۰۷۳)

خو دغه خبره په پام کي ولری چي د تعزيت مطلب ځني خلګ د غم اظهار کښي، او له دي کبله د مړي د کور والاؤ د تسلي کولو په ځای هغوی ته غم په ياد

ورولي او نور يې په غم اخته کړي، په حقيقت کې د تعزيت معنی د تسلي ورکولو ده له دې امله هره هغه طريقه اختيارول په تعزيت کې راځي چې ورڅخه د غم ځپلو خلګو ډاډ او اطمينان وشي او په ارام شي، چې ورڅخه زړه يې مطمئن شي او دغم د احساس سختی يې لږ شي.

او دتسلي ورکولو دغه ثواب فقط د يو چا دمړيني سره خاص نه دی، بلکې په پورتني حديث کې هر غم ځپلي ته تسلي ورکول دهغه اجر او ثواب دلته بيان شوی دی له دې امله کوم سړي ته چې کوم تکليف يا يو غم رسيدلی وي نو هغه ته تسلي ورکول او دهغه تسلي لاري برابرول هغه اجر او ثواب لري کوم چې دغه سړي ته پر دغه تکليف يا غم ورکول کيږي.

## (۱۴) د الله ﷻ لپاره محبت کول:-

د يو چا سره د الله ﷻ د رضالپاره محبت کول هم ډير عظيم الشان عمل دی چې پر هغه باندې ډير د اجر

او ثواب وعدي شوي دي، د الله جل جلاله لپاره د محبت کولو، دغه معنٰی ده چي د يو چا څخه د نيوي ګټه لاس ته راوړل مقصود نه وي، بلکي يا خو ورسره له دې کبله محبت وشي چي هغه ډېر ديندار، متقي او پرهيزګاره وي يا ديني عالم وي يا د دين په خدمت بوخت وي يا له دې کبله محبت ورسره وشي چي د هغه سره د محبت کولو الله جل جلاله حکم کړی دی لکه مور او پلار، داسي محبت ته په احاديثو کي "حُبٌّ فِي اللهِ" د الله جل جلاله لپاره محبت کول ويل شوي دي.

په يو حديث کي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي: چي الله جل جلاله به د قيامت په ورځ فرمايي: چي زما د عظمت او لوی په خاطر په خپل منځ کي محبت کوونکي چېري دي؟ نن چي کله زماد سايې څخه پرته د هيچا سايه نشته، زه داسي خلګو ته په خپله سايه کي ځای ورکوم. (مسلم، کتاب البروالصله)

په يو بل حديث کي ارشاد دی:-

د الله جل جلاله د عظمت لپاره په خپل منځ کي محبت کوونکي د قيامت په ورځ به د نور پر منبرونو باندي وي او خلگ به ور باندي غبطه کوي.

(ترمذی، کتاب الزهد)

حضرت ابو ادريس خولاني رحمه الله تعالی د مشهورو تابعينو څخه دی هغه فرمايي: چي زه د دمشق په جامع کي د حضرت معاذ بن جبل رضي الله عنه و خدمت ته حاضر شوم او عرض مي وکړ چي سوگند په الله! زه ستاسره د الله لپاره محبت کوم، هغه په وارو وارو په قسم سره را څخه پوښتنه وکړه چي په حقيقت کي ستا د الله لپاره زما سره محبت دی؟ کله چي ما څو ځله اقرار وکړ، نو هغه زما ټکری ونيولی خپل لوري ته يې کش کړم او ويې فرمايل:

زيری واوره! ما د رسول الله ﷺ څخه دغه اورېدلي چي الله جل جلاله فرمايي: چي زما محبت وهغو خلگو ته خامخا ورکول کيږي کوم چي زما لپاره په خپل منځ

کي محبت کوي، کوم چي زما لپاره یو له بله سره کښېني کوم چي زما لپاره یو له بله سره کتنه کوي، او زما لپاره یو له بله سره (څه مال) خرڅوي.

(موطا امام مالک، کتاب الشعر)

د الله ﷻ د دوستانو او ښو خلګو سره محبت کول ځرنګه چي په حقیقت کي خاص د الله ﷻ د محبت له کبله کیږي، له دې امله ورباندي د الله ﷻ د محبت اجر او ثواب ورکول کیږي، د دې محبت له برکته الله ﷻ ومحبت کوونکي ته د خپل محبوبو خلګو سره د شاملولو توفیق ورکوي، په یو حدیث کي راغلي دي چي یو سړی د حضرت محمد ﷺ څخه وپوښتل چي یا رسول الله! قیامت کله راځي؟ نبی ﷺ ورڅخه وپوښتل چي تا د قیامت لپاره کومه تیاري کړې ده؟ ده ورته وویل: چي تیاري خو مي نه ده کړې هو! خو زه د الله د رسول ﷺ سره محبت کوم، محمد ﷺ وفرمایل ته چي د کوم چا سره محبت کوې د هغه سره به وې.

حضرت انس رضی الله عنه (كوم چي ددغه حديث روايت كوونكى دى) فرمايي: چي د حضرت محمد ﷺ ددغه ارشاد څخه دومره خوشحاله شو چي د هيڅ شي څخه دومره خوشحالي نه وه راته موندل شوې، بيا يې وفرمايل: چي زما د حضرت محمد ﷺ او حضرت ابوبكر او حضرت عمر رضى الله عنهما سره محبت دى، ددغه محبت له وجهي اميد كوم چي زه د هغوى سره يم كه څه هم زما عملونه د دوى د عملونو برابر نه دي. (صحيح بخاري، كتاب الادب باب علامة الحب فى الله)

ددې مضمون نور هم ډېر حديثونه شته چي ورڅخه معلوميږي چي د الله جل جلاله د خوشحالۍ لپاره د يو چا سره محبت كول ډېر د فضيلت عمل دى ددې له بركته الله جل جلاله په دنيا كي هم د ښه عمل توفيق وركوي او په اخرت كي به هم د ښو خلكو سره وي.

له دې امله د الله جل جلاله د ښو بندګانو سره همېشه د الله لپاره محبت كول په كار دي او دغه نيت لرل په كار

دي چي ددغه محبت له برکته ما ته هم د ښه عمل او نیکي توفیق وشي او الله ﷻ راڅخه راضي شي؟

أُحِبُّ الصَّالِحِينَ وَلَسْتُ مِنْهُمْ
لَعَلَّ اللهَ يَرْزُقُنِى بِهِمْ صَلَاحًا

**ترجمه**: "زه د ښو خلکو سره محبت کوم که څه هم پخپله د ښو خلکو څخه نه یم، ښایي چي الله ﷻ ما ته هم د دوی له برکته د ښو توفیق راکړي".

په حدیث کي دا هم راغلي چي کله کوم سړی د خپل یو ورور سره محبت کوي نو هغه ته په کار ده چي خپل ورور ته ووایي: چي زما ستا سره محبت دی.

(ابوداؤدکتاب الادب، ترمذي کتاب الزهد)

حضرت انس رضي الله عنه فرمایي: چي یو سړی د حضرت محمد ﷺ سره ناست ؤ، په دغه مهال یو بل سړی هلته تېر شو، ناست سړي وویل: یا رسول الله! زما ددغه سړي سره محبت دی، حضرت محمد ﷺ وفرمایل: چي آیا تا وده ته دغه خبره کړې ده؟ هغه سړي وویل چي

"یا" نبی ﷺ وفرمایل: چي ورده ته ووایه هغه سړی ولاړ شو او هغه بل سړي ته یې ځان ورسوی او ورته ویې ویل: زه ستا سره د الله لپاره محبت کوم هغه ورته وویل "د کوم الله لپاره چي ته زما سره محبت کوې الله دي وکړي چي هغه ستا سره محبت وکړي".

## (۱۵) د یو مسلمان کومک کول:-

د یو مسلمان یو ضروري کار ورکول یا د هغه په کار کي کومک کول یا د هغه یو غم او پرېشاني لیري کول هم یو داسي عمل دی چي ورباندي حضرت محمد ﷺ د ډېر غټ اجر او ثواب وعدې کړي دي.

حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما فرمایي: چي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی: مَنْ كَانَ فِي حَاجَةِ أَخِيهِ كَانَ اللّٰهُ فِي حَاجَتِهِ وَمَنْ فَرَّجَ عَنْ مُسْلِمٍ كُرْبَةً فَرَّجَ اللّٰهُ عَنْهُ بِهَا كُرْبَةً مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ.

**ترجمه**: "کوم څوک چي د خپل یو مسلمان ورور په

کار کي بوخت یي الله جَلَّ جَلَالُهُ د هغه په کار (پوره کولو) کي اخته کیږي او کوم څوک چي د کوم مسلمان یو تکلیف لیري کړي الله جَلَّ جَلَالُهُ ددې په بدله کي دده څخه د قیامت د غمونو نه کوم تکلیف او غم لیري کوي.

(ابوداؤد، کتاب الادب باب المواخاة)

یو چا ته لارو ورښوول، د یو چا په سامان اوچتولو کي کومک کول مطلب دا د خلګو د خدمت واړه کارونه ددې حدیث په فضیلت کي راځي، کوم خلک چي په کار ورځي، د الله جَلَّ جَلَالُهُ په حضور کي هغوی ډېر د فضیلت خلک دي. په حدیث کي راغلي چي:

خَيرُ النَّاسِ مَنْ يَنفَعُ النَّاسَ.

**ترجمه**: "د خلګو ښه هغه څوک دی کوم چي خلګو ته فایده ورسوي"

له دې وجهي د خلګو د خدمت هر هغه کار چي وړوکی وي یا غټ ددې د موندلو هڅي او کوښښ په کار دی په دې سره د انسان په نیکیو کي زیاتوب

راځي، دغه رنګه که پر يو چا باندي ظلم کيږي نو ددې ظلم څخه د ژغورلو د امکان په صورت کي هر کوښښ کول د هر مسلمان فريضه ده.

په يو حديث کي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی چي: مسلمان د مسلمان ورور دی نه خو يې هغه بې ياره او کومک کوونکی پرېږدي نه دروغ ورته وايي او نه وعده خلافي ورسره کوي او نه ظلم ورباندي کوي. (ترمذي، البروالصلة)

په يو بل حديث کي ارشاد دی:-

"چيري چي د يو مسلمان بې عزتي کيږي او د هغه عزت پايماله کيږي هلته چي کوم مسلمان هغه بې ياره او کومک کوونکی پرېږدي الله جل جلاله دی په داسي موقع باندي بې ياره او غمخوره پرېږدي چيري چي ورته د کومک اړتياوي او پر کوم ځای چي د مسلمان بې عزتي او بې حرمتي کيږي هلته چي کوم مسلمان دده کومک وکړي نو الله جل جلاله په داسي مهال دده کومک

وکړي چیري چي دی د کومک او نصرت غوښتونکی وي". (ابوداؤد، کتاب الادب)

د مسلمان په کومک کولو کي دغه خبره هم راځي که په کوم ځای کي پر ده باندي غلط الزامونه لګول کیږي یا د غلطي خبري نسبت ورته کیږي نو ددغه الزاماتو جائز دفاع وکول شي لکه چي د حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه روایت دی چي د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ارشاد دی: مَنْ ذَبَّ عَنْ عِرضِ اَخِيهِ رَدَّ اللهُ النَّارَ عن وَجْهِهِ يَوْمِ الْقِيامَةِ.

**ترجمه**: کوم څوک چي د خپل ورور د بې عزتی دفاع وکړي الله جل جلاله به دده له مخه د دوږخ اور لیري کړي. (ترمذي، البروالصله باب ۲۰)

## (١٦) جايز سفارښت کول:-

د یو مسلمان لپاره جایز سفارښت کول هم ډېر د ثواب کار دی، د قرآن کریم ارشاد دی:

مَنْ يَّشْفَعْ شَفَاعَةً حَسَنَةً يَكُنْ لَّهُ نَصِيبٌ مِّنْهَا.
(النساء- ۸۵)

**ترجمه**: کوم څوک چي يو ښه سفارښت وکړي هغه ته په دې کي برخه ورکول کيږي او د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی:- اِشْفَعُوْا تُؤْجَرُوْا.

**ترجمه**: سفارښت وکړئ، تاسي ته به ثواب درکول کيږي. (ابوداؤد، نسائی)

يو ځل حضرت محمد ﷺ ناست ؤ يو سړی راغلی دده ﷺ نه يې څه غوښتنه وکړه، نبی ﷺ وحاضرينو ته متوجه شو او ويې فرمايل: چي ددې سفارښت وکړي تاسي ته به ثواب درکول شي. (بخاري، کتاب الادب)

ښه سفارښت کول پخپله يو ښه عمل دی، برابره خبره ده چي د هغه سړي کار په دغه سفارښت سره وشي او که ونه شي او که يې کار وشو نو اميد شته چي انشاء الله دوه چنده ثواب به ورکول کيږي.

[illegible]

د جایز مقصد لپاره وي او په دې سره کوم ناجائز یا ناحقه کار کول مقصود نه وي ولي چي د ناروا سفارښت ګناه هم ډېره غټه ده، له دې امله د سفارښت کولو څخه وړاندي ددې خبري تحقیق کول واجب دی چي د کوم سړي سفارښت کیږي هغه ددې حقداره دی او د کوم کار لپاره چي کیږي هغه کار جایز دی.

دغه ډول د سفارښت په معامله کي دوهمه مهمه خبره داده چي وکوم سړي ته چي سفارښت کیږي پر هغه باندي کوم غیر ضروري بار وانه چول شي، تر ټولو وړاندي خو دغه کتل په کار دي چي هغه کار دده په اختیار او وس کي دی او که نه دی، که کار دده په وس او طاقت کي نه وي نو سفارښت کول نه دي په کار، ولي چي په سفارښت کولو سره شرمنده کیږي او که دغه خبره معلومه نه وي چي دغه کار دده په وس کي دی او که نه دی نو په داسي صورت کي په لازمي او ضروري اندازه کي سفارښتنه کول نه دي په کار بلکي دغه وضاحت کول ضروري دي که دغه کار ستا

په وس او طاقت کي وي نو بيې وکړه.

دغه ډول که کوم کار د يو سړي په اختيار کي هم وي نو ډېر وختونه هغه څه خاص اصول او قانونه يا د ترجيح کوم صورت يې ټاکلی وي په داسي صورت کي هم سفاربښت په لازمي ډول د کولو پر ځای په داسي طريقه کول په کار دی چي وربانديي د خپلو اصولو يا ترجيحاتو په خلاف کوم کار کولو نه داسي زور وانه چول شي چي ورڅخه هغه کوم بار محسوس کړي.

نن زمان عمومًا د سفاربښت کولو سره دغه خبره په ذهن کي وي چي سفاربښت کول د ثواب کار دی خو د سفاربښت چي کوم احکام او اداب شريعت ټاکلی دي د هغه مراعت نه کيږي په خاصه توګه بيا ددې خبري خو ډېر لږ خلګ مراعت کوي چي وکوم چا ته سفاربښت کيږي وهغه ته تکليف ونه رسي له دې امله دغه خبره هيڅکله هېره ول نه دي په کار چي په شريعت کي د هر شي او کار اداب او احکام شته او ددې مراعت کول ضروري دي ويوه مسلمان ته ګټه رسولو لپاره يو بل

څوک په غیر ضروري تکلیف یا تاوان کي اچول هیڅکله روانه دي.

## (۱۷) د یو چا عیب پټول:-

که د یو مسلمان یو عیب معلوم شي نو تر څو چي له ده نه ویو بل چا ته د تاوان رسولو خطره نه وي، دده عیب پټول ډېر د ثواب کار دی.

حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمایي: لَايَسْتُرُ عَبْدٌ عَبْدًا فِى الدُّنْيَا الاَّ سَتَرَهُ اللهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

**ترجمه**: کوم بنده چي د یو بل بنده عیب پټ کړي الله جل جلاله به د قیامت په ورځ دده پرده وکړي.

**(صحیح مسلم، کتاب البروالصله)**

او حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه روایت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمایي:

مَنْ رَاٰى عَوْرَةً فَسَتَرَهَا كَانَ كَمَنْ اَحْيَامَوْءدَةً.

**ترجمه**: کوم څوک چې د یو چا عیب ووینې او هغه پټ کړي نو د هغه دغه عمل داسې دی لکه څرنګه چې ژوندۍ په قبر کې ښخه شوې نجلۍ وژغوري.

(سنن ابی داؤد، کتاب الادب مستدرک حاکم ټوک۴ مخ۳۸۴)

د یو چا پرده خوندي کول یا عیب پټولو مطلب دادی چې و بل چا ته ددې بیان ونه کړي، او ددغه عیب تشهیر ونه کړي، خو ددې لپاره لاندې خبرې په پام کې لرل ضروري دي:

**لومړی**: د یو چا د عیب پټولو لپاره دروغ ویل روانه دي، له دې امله که یو څوک ددې عیب په اړه پوښتنه وکړي نو لومړی خو د جواب د نه ورکولو کوښښ وکړئ او که جواب ورکولو ته اړ کړل شئ نو د حقیقت خلاف خبره دې نه کوي.

**دوهم**: د یو چا د عیب پټول هغه وخت جایز دی کله چې ددغه عیب اثر ددغه سړي تر ذاته محدود وي خو که له دې نه وبل سړي ته د تاوان رسېدلو خطره وي

نو وار سړي ته دغه عيب په اره ښوول جايز بلکي د
ثواب باعث دی، په دې شرط چي نيت يې دا وي چي
ونورو ته تاوان ونه رسي، رسوا کول يې مقصد نه وي
مثلاً د يو سړي عادت دی چي هغه د خلګو پيسه په
چم او دوکې سره اخلي او بيا يې خوري يا قرض
واخلي خو د ورکولو اهتمام نه کوي او نا خبره خلک
دده سره په معامله کولو کي تاوان کوي، نو وکومو
خلګو ته چي د تاوان رسېدلو خطره وي وهغوی ته
ويل کوم باک نه لري دغه ډول که يو چا چيري د وادہ
لپاره مرکه لېږلې وي او انجلۍ والا دده د حالاتو
خبر نه کوي نو هغوی په حقيقت سره خبره ول صحيح
کار دی، خو په دغه ټولو صورتونو کي نيت يې د
تاوان څخه د حفاظت وي.

دغه رنګه که يو سړي يو داسي جرم کړی وي چي
ورڅخه په ټولنه کي د بدۍ د خپرېدلو خطره وي نو
اړونده حکومتي څانګه خبره ول کوم باک نه لري،
بلکي خبره ول يې د ثواب کار دی په دې شرط چي

نیت یې د ټولنې د اصلاح وي، د مجرم څخه ذاتي بدله اخیستل یا دښمني سرته رسول موخه او هدف نه وي.

## (۱۸) د ښو کارونو ښوونه کول:-

یو څوک و یو ښه کار ته تیارول هم ډېر د ثواب کار دی، که د یو سړي په هاند او هڅو سره یو څوک په یو ښه کار باندې چمتو شي نو ددغه ښه کار ثواب چې څومره وهغه کوونکي ته ورکول کیږي دومره ثواب هغه سړي ته هم ورکول کیږي کوم چې په دغه ښه کار کې یې ده رهبري کړې ده.

د حضرت ابومسعود انصاري رضي الله عنه څخه روایت دی چې حضرت محمد ﷺ فرمایي: چې کوم څوک ویو ښه کار ته د یو چا رهبري او لارښوونه وکړي هغه ته دومره ثواب ورکول کیږي څومره چې وکوونکي ته ورکول کیږي. (مسلم)

او وښه کار ته دغه لارښوونه که په یو ټولنیز

ورکول شي او ددغه ترغیب په نتیجه کي هغه کار وکړي نو د ټولو خلګو د ښو عملونو ثواب ورهبري کوونکي ته ورکول کیږي.

حضرت ابوهریره ﵁ روایت کوي: چي حضرت محمد ﷺ فرمایي:

مَنْ دَعَا اِلٰی هُدًی کَانَ لَهُ مِنَ الاَجْرِ مِثْلَ اُجُورِ مَنْ تَبِعَهُ لَایَنْقُصُ ذٰلِکَ مِنْ اُجُوْرِهِمْ شَیْئًا وَمَنْ دَعَا اِلٰی ضَلَالَةٍ کَانَ عَلَیْهِ مِنَ الاِثْمِ مِثْلَ آثَامَ مَنْ تَبِعَهُ لَایَنْقُصُ ذٰلِکَ مِنْ آثَامِهِمْ شَیْئًا. (مسلم)

**ترجمه**: کوم څوک چي د هدایت بلنه وکړي، هغه ته د ټولو خلګو برابر ثواب ورکول کیږي کوم چي دده په ښوونه عمل وکړي او د هغو خلګو په ثواب کي کومه کمي نه راځي، او کوم څوک چي د یوې ګمراهۍ بلنه ورکړي هغوی ته د هغو خلګو برابر ګناه ورکول کیږي کوم چي دده په دعوت عمل وکړي اودده په ګناه

کي کوم لږ والی نه راځي.

دغه ثواب هغه وخت دی چي بل سړی د رهبري کوونکي په خبرو باندي عمل وکړي خو که فرضًا هغه عمل ونه کړي بيا هم انشاء الله د خير خواهۍ د نصيحت ثواب ورکول کيږي، ولي چي په حديث کي راغلي دي:

أَمْرٌ بِالْمَعْرُوْفِ صَدَقَةٌ وَنَهْيٌ عَنِ الْمُنْكَرِ صَدَقَةٌ.

**ترجمه**: د ښو حکم کول يو ډول صدقه ده، او د بدۍ څخه منع کول هم يو ډول صدقه ده. (مسلم)

نو هر کله چي ويو چا ته د ښه خبري د ښودلو او يا د يو ښه کارد مشورې ورکولو موقع راشي نو هيڅکله ورڅخه ډډه نه ده په کار، هو د دغه خبري فکر کول ضروري دی چي د دغه کار لپاره دغسي طريقه غوره شي چي ورڅخه د اوريدونکي رسوايي يا د زړه ازار ونه شي، د خلکو په مخ کي ورته څه ونه ويل شي، او اندازې سره د تکبر او د مخاطب د خوارولو نه وي بلکې

د خلکو څخه جلا داسي په نرمه لهجه کي خبره وکړي چي پکښي د زړه درد، همدردي او خير خواهي وبريښي، ددې لپاره داسي وخت غوره کړل شي چي د اورېدونکي ذهن په تشويش کي نه وي مطلب دا چي د حکمت او خير غوښتني مراعت کول ډېر ضروري دی د قران کريم ارشاد دی:

اُدْعُ اِلٰی سَبِیْلِ رَبِّکَ بِالْحِکْمَةِ وَالْمَوْعَظَةِ الْحَسَنَةِ.

(النحل- ۱۲۵)

**ترجمه**: د خپل رب ولوري ته په حکمت او ښه نصيحت سره بلنه ورکړه.

## (۱۹) صدقه او خيرات کول:-

صدقه او خيرات ډېر کول هم د انسان په اعمال نامه کي د نيکيو زياتوب، او د ګناهونو معافي او د دوزخ د عذاب څخه د خلاصون يوه مؤثره وسيله ده.

په قران او حديث کي د خيرات په کارونو کي د پيسه مصرفولو ډېر فضيلتونه راغلي که سره راټول

کړه شي نو يو بېل کتابٌ جوړېدای شي، شيخ الحديث حضرت مولانا محمد زکريا صاحب کاندهلوي قُدِّسَ سِرُّهُ د "فضائل صدقات" په نامه سره په همدې موضوع چي کوم کتاب ليکلی دی هغه په دغه موضوع ډېر جامع کتاب دی له دې کبله دلته د قران او حديث بيان شوي فضايل د تفصيل اړتيا نشته کوم څوک چي وغواړي هغوی دي د هغه کتاب مطالعه وکړي.

خو دلته چي وکومي خبري ته پام اړول په کار دي، هغه دادی چي خير او خيرات کول د فضائلو لاس ته راوړلو لپاره دا ضروري نه ده چي ډېري پيسې مصرف شي، بلکي هر سړی د خپل مالي حيثيت سره سم په خير او خيرات کولو سره دغه فضيلت لاس ته راوړلای شي، که د يو سړي سره فقط يوه روپي (کالداره) وي او له دې نه يوه پيسه په يو ښه کار کي صرف کړي نو د الله په دربار کي داسي ده لکه د يو لک روپو مالک چي زر روپۍ خيرات کړي، د الله جَلَّ جَلَالُهُ په دربار کي اصلي عزت او قدر د اخلاص دی، په اخلاص سره لږ

تر لږه صدقه هم د الله ﷻ په دربار کي مقبوله ده، او ورباندي د صدقې او خيرات ټوله فضائل مکمل کېداى شي لکه څرنګه چي حضرت محمد ﷺ په يو حديث کي فرمايي: اِتَّقُوا النَّارَ وَلَوْ بِشَقِّ تَمْرَةٍ.

**ترجمه**: د دوږخ د اور نه ځان وژغورئ که څه هم د يوې خرما د نيمايي برخي په ذريعه ولي نه وي.

(بخاري، مسلم)

يعني که د يو سړي سره د خيراتولو لپاره بل کوم شی نه وي او هغه نيمه خرما ويو اړ سړي ته ورکړي نو له دې نه هم د خيرات ثواب ورکول کيږي او دغه هم د ګناهونو د معافۍ ذريعه کېداى شي.

له دې حديث نه په ښکاره بريښي چي دکومو خلګو مالي حالت کمزوره وي هغه دي هم خپل ځان د خيرات د فضيلتونونه نه بې برخي کوي بلکي هغه د خپل حيثيت سره سم لږ تر لږه خرڅولو سره هم په دغه سعادت کي برخه اخيستلاى شي.

ځيني خلګ د خپل مال په زکٰوة ورکولو سره بالکل
بې غمه شي او د زکٰوة څخه پرته يوه پيسه هم د
خرڅولو جرات نه کوي بلکې تول تبه د زکٰوة په ادا
کولو کي ګڼي، داسي کول مناسبه نه ده، زکٰوة خو يوه
فريضه ده او ددغه فريضې مصارف خاص دي، د
نيکي ډېر کارونه داسي دي چي زکٰوة نه سي پکښي
مصرفېدلای، مثلاً په مسجد کي چنده ورکول او
داسي نور، له دي کيله څه پيسې د زکٰوة څخه پرته هم
په نښو مصارفو کي خرڅول په کار دي، ددې لپاره د
بزرګانو دغه معمول او عادت دی چي هغه د خپل ګټي
څه في صدي برخه د خيرات لپاره ځانګړې کړې وي او
هر کله چي څه ګټه ورته راشي د هغه يوه ټاکل
شوې برخه بېله کړي په يو پاکټ کي خوندي کړي،
حکيمُ الأُمّت حضرت مولانا شاه محمد اشرف علی
تهانوي قُدِّسَ سِرُّهُ د خپلي ګټي پنځمه برخه (شل فی
صدي) همېشه ددغه کار لپاره جلا کول، ځيني نورو
بزرګانو شلمه برخه يا لسمه برخه ټاکلې وه، ددې فايده

دا وي چي هر کله کوم د خيرات کولو مصرف مخي ته راشي نو د فکر کولو اړتيا نه وي بلکي هغه پاکټ يې ورياد وي چي زما لپاره کوم مصرف ولټوه او پر خپل وخت باندي د خيرات کولو د پيسې د انتظام کولو تکليف هم نه وي او په اساني سره د خير په مصرفولو کي د خرڅولو توفيق ورکول کيږي.

هر سړی دي د خپل مالي حالاتو سره سم ددغه کار لپاره څه ټاکل شوې برخه بېله کړي نو د اجر او ثواب دلاس ته راوړلو يو ځانګړې سلسله به وموندي، ضروري نه ده چي هر سړی پنځمه يا لسمه برخه خاص کړي د خپل حالاتو سره سم لږ تر لږه برخه دي وټاکي انشاء الله بشپړ د خير عمل دی.

په خير او خيرات کولو کي اصل نيت خو د الله ﷻ رضا ګټل هدف دی، خو د الله ﷻ معامله د خپلو بندګانو سره همېشه داسي وي چي خير او خيرات عادت لرونکي ته الله ﷻ په دنياکي هم ډېر څه

ورکوي، په حدیث کي راغلي: "چي په صدقه سره په مال کي لږوالی نه راځي" یعني الله جَلَّ جَلَالُهُ د داسي سړي په رزق کي هم برکت کوي.

## (۲۰) معافي کول:-

یو سړي ته که یو چا تکلیف رسولی وي نو هغه د شریعت په حدودو کي د بدله اخیستلو حق لري، خو که د بدله اخیستلو پر ځای یې معاف کړي نو د الله جَلَّ جَلَالُهُ په حضور کي ددې ډېر اجر او ثواب دی، په قران کریم کي ارشاد دی:

وَلْيَعْفُوْا وَلْيَصْفَحُوْا اَلَاتُحِبُّوْنَ اَنْ يَّغْفِرَ اللّٰهُ لَكُمْ.

(النور۲۲)

**ترجمه**: او هغوی ته ښایي چي معافي وکړي او ښایي چي تېرې تېر دي شي آیا تاسي نه خوښوئ چي الله ستاسي مغفرت او بخښنه وکړي.

یعني کوم سړی په دنیا کي داسي دی چي ورڅخه کومه نه کومه غلطي نه کیږي او هر سړی دغه غواړي

چي الله ﷻ دغه غلطي معاف کړي نو که د يو بل يوه
څخه کومه غلطي وشي نو دغه فکر په کار دی چي
څرنګه زه د الله ﷻ نه د معافی غوښتونکی يم دغه
ډول ما ته هم په کار ده چي زه يې معاف کړم په آيت
کي ودغه لوري ته هم اشاره ده چي کوم څوک د نورو د
معافی عادت ولري انشاء الله اميد دی چي الله ﷻ
دده خطاؤ بخښنه وکړي.

دغه خبره په ډېرو احاديثو سره ثابته ده لکه
حضرت ابو الدرداء رضي الله عنه چي روايت کوي چي حضرت
محمد ﷺ فرمايي:

مَامِنْ رَجُلٍ يُصَابُ بِشَیْءٍ فِی جَسَدِه فَيَتَصَدَّقُ بِهِ
اِلاَّ رَفَعَهُ اللّٰهُ بِهِ دَرَجَةً وَحَطَّ عَنْهُ بِهِ خَطِيْئَةً.

**ترجمه**: کوم چا ته چي يو تکليف ورورسيږي او
هغه يې معاف کړي نو الله ﷻ به دده درجې اوچتوي
او ددغه عمل په برکت به دده ګناهوي معاف کړي.

په ترمذي کي راغلي چي د يو سړي غاښ يو چا مات کړی ؤ هغه سړي و حضرت معاويه رضي الله عنه ته د غچ اخيستلو لپاره ورغلی، هلته حضرت ابودرداء رضي الله عنه پورتنی حديث واوروی نو هغه سړي د بدله اخيستلو اراده پرېښووله او خپل غليم يې معاف کړی.

(جامع ترمذي، کتاب الديات حديث ۱۴۱۲)

د فکر کولو خبره داده که يو سړی بل د معافېدلو پر ځای دده څخه بدله واخلي، يعني هغه ته هم دغه ډول تکليف وروړسوي نو د دوی وده ته څه ګټه ورسيږي يا که يو چا دغه ډول تکليف وررسولی دی چي بدله اخيستل يې امکان نه لري نو د هغه د نه معافولو نتيجه به دا وي چي په اخرت کي به عذاب ورکول کيږي.

دلته د غه هم د فکر وړ خبره ده که وده ته په اخرت کي عذاب ورسېدی نو له دې نه ماته څه ګټه ورسېده؟ ددې څخه پرته که يې دی معاف کړی نو له دې نه د معاف کوونکي سړي ګناهوي معاف شي د دوزخ د

عذاب څخه به خلاصون ومومي او الله جل جلاله به يې درجې اوچتې کړي له دې کبله د عقل خبره دغه ده چې په معاف کولو سره دغه فضيلت حاصل کړئ.

خو دغه هم د پام وړ خبره ده چې د يو چا د معافولو مطلب دادی چې په دنيا يا په اخرت کې ورڅخه بدله نه واخيستل شي او بس! که يو سړی دغه شان معافي وکړي نو دغه فضيلت ورته حاصل شو.

لېکن دا ضروري نه ده چې د معافۍ وروسته دده سره زړه هم خلاص او ميلان ورته وشي ولې چې د زړه ميلان کېدل اختياري خبره نه ده، هغه تر ډېره حده د نورو خلګو په آينده روی يې باندي موقوفه وي له دې امله که په زړه کې ورسره مينه نه وي او نه اړيکي جوړي نه شي خو د بدله اخيستلو عزم يې پرې ايښی وي او اړيکي فقط د حقوقو ترادا کولو (د سلام جواب او داسې نور) پوري وي نو بيا هم انشاء الله د معافولو فضيلت ورته حاصل دی.

چې د دغه سړي له لوري په راتلونکي کې دغه ډول تکليف رسولو مخه ونه نيول شي، که خطره وي چې دغه سړي دوهم ځل داسي ناوړه کار کوي نو د دوی د مخ نيوي لپاره څه تدبير په کار اچول د معافۍ خلاف نه دی په داسي صورت کې مخکنی حق دي معاف کړي خو اينده دده لوري د تکليف څخه د ژغورني لپاره د صلاحيت والا خلګو نه کومک واخيستل شي بيا هم د معافۍ فضيلت ورکول کيږي.

هر کله چې د يو چا په خلاف د بدله اخيستلو جذبه رامخ ته شي دغه فکر په کار دی چې حضرت محمد ﷺ د خپل ذات لپاره هيڅکله د يو چا نه بدله نه ده اخيستې کله چې کافرانو ډبرې وربانديي واورولې او په دې سره دده مخ مبارک په وينو سور شو بيا هم دده مبارک پر ژبه باندي دغه دعا وه:

اَللّٰهُمَّ اَغْفِرْ لِقَوْمِيَ فَاِنَّهُمْ لاَيَعْلَمُوْنَ.

**ترجمه**: ای الله! زما قوم معاف کړي ودوی ته د

حقیقت خبر نشته. (بخاري، مسلم)

## (۲۱) نرمي کول:-

د خلګو سره د نرمي معامله کول هم د الله ﷻ په دربار کي ډېر ښه عمل دی چي وربانديي ډېر ثواب ورکول کيږي، حضرت عائشه رضی الله عنها روایت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايي:

انَّ اللّٰہ رَفِیق یُحِبُّ الرِفقَ ویُعْطِی عَلَی الرِّفْقِ مَا لَایُعْطِی عَلَی الْعُنفِ وَمَا لَا یُعْطِی عَلَی ماسِواہ.

**ترجمه**: الله ﷻ د نرمی معامله کوونکی دی او د نرمی معامله خوښوي او په نرمو اخلاقو هغه اجر ورکوي کوم چي په تيزي او سختی يي نه ورکوي (بلکي) پر نور شي يي هم نه ورکوي. (مسلم)

حضرت عائشه رضی الله عنها یو بل حدیث بیانوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايي:

انَّ الرِّفْقَ لایَکُوْنُ فِی شَیءٍ اِلَّا زَانَهُ وَلاَیُنْزَعَ مِن

شَىْءٍ اِلَّاشَانَهُ.

**ترجمه**: نرمي چي په کوم شي کي وي هغه ته ښايست ورکوي او د کوم شي څخه چي يې ليري کړي په هغه کي عيب پيدا کوي. (مسلم)

د نرم خوى مطلب دادى چي د غصې څخه په مغلوبېدو سره سخت الفاظ يا سخته رويه غوره کولو نه ډډه او پرهېز وکړه شي، د خلگو سره په نرمو خيرو او پسته لهجه کي خبري وشي، که په يو چا اعتراض کوي يا ورسره اختلاف ښکاره کوي نو د هغه لپاره هم داسي انداز غوره شي چي پکښي د سختۍ او تېزۍ پر ځاى د خيرخواهۍ تواضع او د زړه سوي اړخ پکښي ښکاره وي که د يو ورکي د روزني لپاره وربانديِ غصه ضروري وي نو هغه هم فقط د ضرورت په اندازه او د اعتدال په حدودو کي وي.

دغه ډول د نرمۍ يوه برخه دا هم ده چي پر خبره خپره د خلگو سره د اخته کېدو، بحث کولو يا جګړې

نه ده وکول شي أو د خلکو سره تر وسه د ښه کمان معامله وشي تر دې چې د کوم چا سره د خرڅولو رانيولو او داسي نورو معامله کوي نو په دې کي هم د نرخ او داسي نورو معاملو کي د ضد او بحث انداز اختيار نه کړل شي، که معامله د قبليدو وړ وي نو دې قبوله کړي او که د قبليدو وړ نه وي نو دي پرېښول شي خو نور خلک د ځان وخبرو ته رااړولو باندي نه مجبوره کوي او يو څوک مجبوره کول ښه خبره نه ده.

حضرت جابر ﷺ روايت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايي: رَحِمَ اللّٰهُ رَجُلاً سَمْحًا اِذَا بَاعَ واِذَا اشْتَرىٰ وَاِذَا قْتَضىٰ.

**ترجمه**: الله ﷻ دي پر هغه سړي باندي رحمت وکوي کوم چي نرم خويه او عفوه کوونکی وي، کوم چي وپلوري هغه وخت هم، چي کوم شی رانيسي هغه وخت هم، او کله چي د يو چا څخه د خپل حق غوښتنه وکړي هغه وخت هم. (بخاري)

حضرت حذیفه بن یمان ﷺ د حضرت محمد ﷺ څخه روایت کوي چي و الله ﷻ ته دده د بندګانو څخه یو داسي بنده به راوستل شي کوم ته چي الله ﷻ مال ورکړی وي، الله ﷻ به ورڅخه پوښتنه وکړي چي تا په دنیا کي کوم عمل کړی دی؟ نو هغه به وایي "ای زما ربه! تا ما ته خپل مال راکړی ؤ ما د خلګو سره معامله کول او زما عادت د معافۍ ؤ نو ومالدار ته مي اساني پیدا کول او فقیر ته مي مهلت ورکوی" الله ﷻ به ورته وایي چي زه ددغه شان عمل تر تا زیات مستحق یم، بیا به وملئکو ته امر وکړي چي زما دغه بنده معاف کړئ. (مسلم)

حضرت ابوهریره ﷺ روایت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمایي: مَنْ اَنْظَرَ مُعْسِرًا اَوْ وَضَعَ لَهُ اَظَلَّهُ اللهُ یَوْمَ الْقِیَامَةِ تَحْتَ ظِلِّ الْعَرْشِ یَوْمَ لَاظِلَّ اِلَّا ظِلُّهُ.

**ترجمه**: کوم څوک چي ویو تنګدسته (مقروض) ته مهلت ورکړي یا په قرضه کي مراعت ورسره وکړي

الله ﷻ به دي د قيامت په ورځ د عرش په سايه کي ولري، کله چي دده د سايې نه پرته بله کومه سايه نه وي. (ترمذي)

د حضرت ابو قتاده رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمايي: مَنْ سَرَّهُ اَنْ يُنَجِّيَهُ اللّٰهُ مِنْ كُرَبِ يَوْمِ الْقِيَامَةِ فَلْيُنَفِّسْ عَنْ مُعْسِرٍ اَوْ يَضَعُ عَنْهُ.

**ترجمه**: کوم څوک چي دغه خوښوي چي الله ﷻ د قيامت د ناکراريو څخه ورته خلاصون ورکړي، هغه ته په کار ده چي د يو تنګدسته په مشکل کي اساني وکړي يا يې په قرض کي مراعت وکړي. (مسلم)

## (۲۲) د خلګو تر منځ صلح کول:-

که د دوو مسلمانانو تر منځ کومه جګړه وي نو د دوی صلح کول هم ډېر د ثواب او اجر کار دی په قران کريم کي ارشاد دی: اِنَّمَا الْمُؤْمِنُوْنَ اِخْوَةٌ فَاَصْلِحُوْا بَيْنَ اَخَوَيْكُمْ وَاتَّقُوا اللّٰهَ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُوْنَ. (الحجرات-١٠)

**ترجمه**: بیشکه واړه مسلمانان یو له بله سره وړونه دي نو د دوو وړونو تر منځ روغه جوړه سره کوي او د الله نه ووېرېږئ چي پر تاسي مهرباني وشي.

په یو بل آیت کي ارشاد دی:

فَاتَّقُوا اللّٰهَ وَاَصْلِحُوْا ذَاتَ بَيْنِكُمْ. (الانفال- ۱)

**ترجمه**: نو د الله نه ووېرېږئ او د خپل منځي اړیکو اصلاح وکړئ.

د قران کریم ددې ارشاداتو په رڼا کي دغه خبره برېښي چي د دوو مسلمانانو تر منځ صلح کول او د هغوی د اړیکو د سمولو هاند او هڅي کول څومره نیک عمل دی.

ددې مقصد لپاره ودواړو ته یو د بل له لوري نه داسي خبري ور رسول په کار دي چي د هغوی تر منځ محبت سره وشي او غلط فهمي لیري شي تر دې حده ددې غرض لپاره داسي خبري کول هم جایز دي کوم چي په ظاهره د حقیقت خلاف وي مثلاً د دوو خلکو

تر منځ څه دښمني وي نو ویوه ته دا ویل چي هغه بل خو ستا لپاره د خیر دعاګاني کوي، او په زړه کي دغه نیت کول چي هغه د ټولو مسلمانانو لپاره د مغفرت او بخښني دعا کوي، او په ټولو مسلمانانو کي دده غلیم هم داخل دی، ددغه شان خبرو په اړه د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی چي: لَيْسَ الكَذَّابُ الَّذِىْ يُصْلِحُ بَيْنَ النَّاسِ فَيَنْمِى خَيْرًا اَوْ يَقُوْلُ خَيْرًا.

**ترجمه**: هغه سړی دروغجن نه دی چي د خلګو تر منځ صلح وکړي او کوم ښه خبره وزته ورسوي او یا ښه کلمه ورته ووایي. (بخاري، مسلم)

په یو بل حدیث کي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی: يَعْدِلُ بَيْنَ الاثْنِين صَدَقَةٌ.

**ترجمه**: د دوو کسانو تر منځ انصاف کول هم صدقه (خیرات) ده (یعني ثواب لري). (بخاري، مسلم)

دخلګو ترمنځ نفرت او دښمني پیدا کول یو شیطاني عمل دی او د یو حدیث نه بریښي چي شیطان د هیڅ

عمل څخه دومره نه خوشحاله کيږي څومره چي په زړونو کي يو له بله نفرت اچولو سره خوشحاله کيږي، څرنګه چي په حديث کي راغلي دي چي شيطان تر ټولو غټه کارنامه خپله دغه ګڼي چي د سړي او ښځي تر منځ بيلتون راولي، ددې څخه پرته که د دوو مسلمانانو تر منځ په خاص ډول بيا د خاوند او ښځي تر منځ د غلط فهميو د ليري کولو او د دوی د اړيکو د ښه کولو کوښښ وشي نو دغه ډېر د ثواب عمل دی.

دغه خبره په ځانګړې توګه د هغو خلکو لپاره يادول په کار دي کوم چي يو ځای کي هستوګنه کوي ده رنګه خوانښې، مېړور او د اندرور په منځ کي زموږ په ټولنه کي چي کومي جګړې کيږي هغه عمومًا د اسلام ددغه تعليم د نه عملي کولو له امله پيښيږي که په دغه تعليم عمل وشي نو دنيا او اخرت به دواړه سم او ښکلي شي.

## (۲۳) د یتیمانو او کونډیانو کومک کول:-

د یتیمانو او کونډیانو کومک کول هم ډیر د فضیلت عمل دی د قرآن کریم ارشاد دی:

یَسْئَلُوْنَکَ عَنِ الْیَتٰمٰی قُلْ اِصْلَاحٌ لَّهُمْ خَیْرٌ.

(البقرة- ۲۲۰)

**ترجمه**: خلک ستا څخه د یتیمانو په باب پوښتنه کوي ته ورته ووایه: چي د هغوی حالت سمول ډیر د خیر کار دی.

حضرت سهل بن سعد رضی الله عنه روایت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمایي: اَنَا وَکَافِلُ الْیَتِیْمِ فِی الْجَنَّةِ هٰکَذَا وَاشَارَ بِالسَّبَابَةِ وَالْوُسْطیٰ وَفَرَّجَ بَیْنَهُمَا.

**ترجمه**: زه او د یتیم کفالت کوونکی په جنت کي به دغه شان یو او په دې ویلو سره نبی ﷺ خپل د شهادت ګوته او د منځ په ګوته کي لږ فاصله کولو سره

اشاره وکړه. (بخاري)

په دغه حدیث کي د یو یتیم د سر پرستۍ دومره غټ فضیلت بیان کړی دی چي ددې د عظمت تصور کول هم ګران دی، یعني داسي سړی به په جنت کي د حضرت محمد ﷺ سره دومره نژدې وي دغه دومره نژدېوالی د بیانولو لپاره حضرت محمد ﷺ اشاره وکړل چي دا به دغه شان نژدېکت وي لکه څرنګه چي د شهادت ګوته او د منځ ګوته یو له بله سره نژدې دي.

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه په روایت کي حضرت محمد ﷺ دغه وضاحت هم کړی دی چي د یتیم سر پرستي کوونکي ته که د هغه قریب وي مثلاً مور نیکه، ورور او داسي نور..... یا قریب نه وي په دواړو صورتونو کي هغه ددغه اجر او ثواب مستحق دی.

(ریاض الصالحین صفحه ۱۱۸ په حواله د مسلم)

او د کونډې په باب د حضرت ابوهریره رضي الله عنه روایت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمایي: اَلسَّاعِی عَلَی

الاَرْمَلَة وَالْمِسْكِيْنِ كَالْمُجَاهِد فِى سَبِيْلِ الله وَاَحسبهُ قال وَ كَالْقَائِمِ الَّذِىْ لاَيفتر وكَالصَّائِمِ الذى لاَيفطرُ.

**ترجمه**: يعني كوم سړی چي د كونډي يا يو مسكين لپاره كوښښ كوي هغه د الله په لاره كي د مجاهد په شان دی او (راوي وايي چي) زما خيال دی چي نبی ﷺ دغه هم فرمايلي وه چي دا د هغه سړي په شان دی چي هميشه پرته له كومي وقفي نه په لمانځه كي ولاړ وي او د هغه روژاتي په شان دی چي كله هم روژه نه پرېږدي. (بخاري، مسلم)

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمايي چي د مسلمانانو تر ټولو ښه كور هغه دی چي پكښي د يو يتيم سره ښه چلن كيږي او ناوړه او بد كور هغه دی چي پكښي د يو يتيم سره بد چلن كيږي.

(الترغيب للمنذرى صفحه ۱۲۷ ټوک ۴ په حواله د ابن ماجه)

قران او حديث د يتيمانو او كونډيانو د كومک د

فضائلو څخه ډک دی خو ددغو خو ارشاداتو څخه
اندازه لګول کیدای شي چي دغه عمل و الله ته څومره
خوښ دی له دې کبله چي هر کله د یو یتیم یا کونډې
سره د ښو توفیق خدا ی درکړي دغه هیڅکله د لاسه
مه ورکوه او څه ډول د ښو او کومک کولو توفیق
درکول شي دغه نعمت ګڼل په کار دی، انشاء الله
ددغو فضائلو څخه به برخه خامخا درکول کیږي په دې
شرط چي نیت د ریا کاري نه وي او نه هم احسان اچول
موخه وي بلکي فقط د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا لپاره کار وشي،
چي ددې یو اثر دا هم کیدای شي چي که د هغه له
لوري کومه شکریه یا بدله درنه کړه شي بیا هم دغه
عمل بې کاره ونه ګڼي او دغه فکر وکړي چي اجر دده
څخه نه بلکي د الله جَلَّ جَلَالُهُ څخه به راکول کیږي.

## (۲۴) په خپلي ښځي او بچیانو باندي خرچه کول:-

په دې دنیا کي څوک دي چي د خپلي ښځي او

بچيانو د خوړلو چيښلو د برابرولو فکر نه کوي؟ د ځني بې پروا خلکو څخه پرته تقريبًا د هر سړي د معاشي هلوځلو اصلي موخه دغه وي چي د ده ښځه کوچنيان د خوشحالۍ او ارامۍ ژوند وکړي خو دغه خبره بيا ډېرو لږو کسانو ته معلومه ده چي د خپلې ښځي او بچيانو د جايزو اړتياؤ باندي پيسې خرڅول ډېر د ثواب کار دی.

د حضرت ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمايي: چي يو دينار هغه دی چي تاسي يې د الله په لاره (جهاد) کي خرڅ کړئ، يو دينار هغه دی چي تاسي يو د يو غلام په ازادولو کي خرڅ کړئ، يو دينار هغه دی چي ويو مسکين ته يې ورکړئ يو دينار هغه دی چي تاسي يې د خپل د کور خلکو (ښځه او بچيانو) باندي خرڅ کړئ تر دغو ټولو ډېر ثواب د دغه دينار دی چي تاسي په خپل کور والاؤ باندي خرڅ کړئ. (مسلم)

په دغه حديث کي حضرت محمد ﷺ د کور پر بندګانو باندي خرڅول يې د خير تر نورو مصارفو د خرڅولو څخه افضل ګڼلي دي، ددې وجه داده چي د کور د بندګانو نفقه د انسان په ذمه باندي فرض ده او د خير نور مصارف نفل دي او ښکاره خبره ده چي د فرض ادا کولو ثواب د نفل په مقابل کي ډېر دی، له دې څخه دغه خبره هم وبرېښېدل چي په کور والاؤ باندي خرڅ کول ډېر د ثواب باعث دی کله چي محتاج وي خو که دده اړتياوي په مناسب ډول پوره شوي وي نو دغه وخت بيا په نورو باندي خرڅول ډېر ثواب لري.

ام المؤمنين حضرت ام سلمه رضی الله تعالی عنها دحضرت محمد ﷺ څخه وپوښتل چي يا رسول الله! زما کوم زامن چي د مخکني خاوند ابومسلم څخه دی کله چي زه ورباندي څه خرڅه کوم نو آيا پر دې هم ثواب راکول کيږي؟ حال دا چي هغه خو زما زامن دي او زه يې هسي نشم پرې ښولای؟ محمد ﷺ ورته

وويل: هو! تا ته ددغه خرڅولو هم ثواب درکول کيږي.
(بخاري، مسلم)

حضرت سعد بن ابی وقاص رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت محمد صلى الله عليه وسلم فرمايي:

**اِنَّکَ لَنْ تُنْفِقُ نَفَقَةً تَبْغِى بِهَا وَجْـهَ اللّٰهِ الا اُجِـرْتُ بِهَا حَتّٰى مَاتَجْعَلُ فِى فِى امْرَءِ تَکَ.**

**ترجمه**: کوم څه چي ته د الله د رضا لپاره خرڅ کړې، تا ته به ثواب درکول کيږي تر دې پوري چي کومه ډوډۍ ته د خپلي ښځي په خوله کي ورکړې پر دې هم ثواب درکول کيږي. (بخاري، مسلم)

ددغو ټولو احاديثو څخه دغه خبره برېښي چي که کوم سړی د خپلي ښځي او بچيانو د جائز اړتياؤ د بشپړه کولو لپاره په دغه نيت خرچه وکړي چي الله جل جلاله د هغوی حقوق ادا کول زما په ذمه ټاکلي دي، له دې امله زه د الله جل جلاله د حکم د عملي کولو او د هغه د راضي کولو لپاره وربانديي مصرف کوم، نو په هره

خرچه باندي ورته د صدقې او خيرات ثواب ورکول
کيږي.

د الله جَلَّ جَلَالُهُ د کريم شان کوم مقام دی چي کوم کار
انسان د خپل زړه د شوق د پوره کولو لپاره کوي دغه
هم په لږ بدلون سره دومره د اجر او ثواب باعث ګرځول
کيږي چي د خير تر نورو مصارفو هم ددې ثواب زيات
شي له دې امله د خپلي ښځي او بچيانو د جايز اړتياؤ
د پوره کولو لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ د رضا په خاطر ښه په
فراخه زړه خرخول په کار دی او په دې کي د لاس او
زړه تنګي نه ده په کار.

## (۲۵) د مور او پلار سره ښه کول:-

په قران او حديث کي د مور او پلار سره د ښه چلن
کولو ډېر تاکيد راغلی دی، د بندګانو په حقوقو کي
تر ټولو زيات د مور او پلار حق ګڼل شوی دی، قران
کريم هم په ډېرو ايتونو کي د مور او پلار سره د ښه
سلوک او ګزارې کولو حکم کړی دی.

ارشاد دی: وَاعْبُدُوْا اللهَ وَلاَتُشْرِكُوْا بِهِ شَيْئاً وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا. (النساء ۳۶)

**ترجمه**: او د الله عبادت وکړئ او د هغه سره څوک مه شریکوئ او د مور او پلار سره ښه کوئ.

په یو بل آیت کي ارشاد دی:

وَوَصَّيْنَا الاِنْسَانَ بِوَالِدَيْهِ حُسْنًا. (العنکبوت ۸)

**ترجمه**: او موږ و انسان ته د مور او پلار سره د نیکي او ښو امر کړی دی.

حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روایت کوي چي ما د حضرت محمد ﷺ څخه پوښتنه وکړه چي والله جل جلاله ته تر ټولو زیات کوم عمل محبوب دی، ده مبارک وفرمایل: "په خپل وخت باندي لمونځ ادا کول" ما وپوښتل: "ددي وروسته کوم عمل دی؟" ده وفرمایل: "د مور او پلار سره ښه سلوک کول" ما پوښتنه وکړه "بیا کوم عمل دی؟ "ده وفرمایل: " دالله په لاره کي

جهاد کول". (بخاري، مسلم)

حضرت عبد الله بن عمر رضي الله عنه فرمايي: چي يو ځوک وحضرت محمد ﷺ ته راغلی او د الله جل جلاله د رضا او د ثواب د موندلو لپاره يې په جهاد کې د برخې اخيستلو غوښتنه وکړه، نبی ﷺ وپوښتل: "ايا ستا مور او پلار ژوندي دي؟" هغه جواب ورکړ چي هو! دواړه ژوندي دي" ده ورته وفرمايل: "بيا ته ولاړ شه او د دوی ښه خدمت وکړه" او په يو روايت کي راغلي دي چي ده مبارک وفرمايل: "چي د دوی په خدمت کولو سره جهاد وکړه". (بخاري، مسلم)

له دغو احاديثو صفا څرګنديږي چي که ومور او پلار ته د خدمت اړتياوي نو تر څو چي جهاد فرض عين نه وي تر هغه وخته د هغوی په خدمت کي بوختيدل تر جهاد کولو افضل دی او دغه واقعه په عامه توګه مسلمانانو ته معلومه ده چي حضرت اويس قرني رحمة الله عليه د يمن اوسيدونکی ؤ او د حضرت محمد ﷺ

د زيارت لپاره يې راتلل غوښتل خو دده مور وخدمت ته اړه وه له دې امله حضرت محمد ﷺ وځان ته د راتلو څخه دی منع کړ او د مور د خدمت کولو حکم يې ورکړ، څرنګه چې ده په دغه ډول د نبی ﷺ زيارت ونشواى کړاى، خو د مور د خدمت له برکته الله ﷻ ورته هغه اوچت مقام ورکړ چې غټ غټ معزز اصحابان هم دده نه دعا ګاني غوښتلې، کله چې د حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه په زمانه کې ومدينې شريفې ته راستون شو نو حضرت عمر رضي الله عنه په ډېر شوق سره ورسره وکتل او د دعا غوښتلو لپاره تشريف ورووړ.

د مور او پلار سره ښه ګزاره کول په عامو حالاتو کې داسې عمل دى چې پکښې محنت او تکليف زيات نشته، ولې چې هر انسان ته په فطري ډول د خپلې مور او پلار سره محبت وي له دې کبله د هغوى د خدمت او ښه ګزاره کولو ته زړه خپله چمتو وي، بلې خوا ته مور او پلار ته د خپل اولاد سره چې کوم شفقت

وي له دې وجي هغوی خپله د خپلو بچیانو نه داسي کار اخیستل نه خوښوي چي ورته زیات ګران او ستونزمن وي، بلکي په لږ خدمت سره هم خوشحاله کیږي او دعا ګاني ورته کوي دغه رنګه الله جل جلاله دغه عمل دومره اسانه کړی دی چي د یو حدیث له لوري مور او پلار ته یو ځل د محبت په نظر سره کتل هم په ثواب کي د حج او عمرې د ثواب برابر دی.

مطلب دا چي د مور او پلاره سره محبت کولو او د هغوی په اطاعت او خدمت کولو سره انسان په خپل اعمال نامه کي د سترو ښو عملونو ډېره لویه ذخیره یو ځای کولای شي له دې امله حضرت محمد ﷺ فرمایي: چي هغه سړی دي خوار وي، هغه سړی دي خوار وي هغه سړی دي ذلیله وي چي د خپل مور او پلار څخه یو یا دواړه په اخر د عمر کي وموندي بیا هم جنت ته ولاړ نه شي. (مسلم)

مقصد دا چي کوم چا مور او پلار په اخرني عمر کي وموندل دده لپاره جنت ګټل څه مشکل کار نه دی.

هغه ورسره په محبت او خدمت کولو سره ډېر په اساني سره جنت ګټلای شي خو کوم چا چي ددې خبري هيڅ پروا ونه کړل هغه د خوارېدو وړ دی.

په مور او پلار کي الله جَلَّ جَلَالُهُ د مور حق زيات ګڼلی دی، لکه حضرت ابوهريره رَضِيَ اللهُ عَنْهُ چي فرمايي: چي يو ځوک ونبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ته راغلی او پوښتنه يې ځيني وکړه چي يا رسول الله! تر ټولو خلکو زما د ښه چلن تر ټولو زيات مستحق ځوک دي؟ ده مبارک وفرمايل: "ستا مور" هغه بيا پوښتنه وکړه بيا ځوک دی؟ ده وفرمايل: "ستا مور" هغه بيا وپوښتل تر دې نه وروسته ځوک دی؟

نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په جواب کي ورته وفرمايل: "ستا مور" هغه څلورم ځل وپوښتل: چي بيا ځوک دغه ځل نبی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وفرمايل: "ستا پلار". (بخاري، مسلم)

ددې حديث په رڼا کي معززو علماؤ فرمايلي دي چي د مورحق د پلار په مقابل کي درې چنده زيات

دی، ددې وجه ښکاره ده چې د انسان په روزنه کې ځومره اندازه تکلیف چې مور یې زغمي، پلار یې نه زغمي، د مور د تکلیفونو بیان په قران کریم کې په خصوصیت سره راغلی دی، دوهم دا چې ومور ته د پلار په مقابل کې عمومًا د خدمت اړتیا هم زیاته وي له دې امله الله جل جلاله د مور خدمت ته ډېره ترجیح ورکړې ده.

هسې خو د مور او پلار خدمت په هر حالت کې د انسان د اساسي فرائضو څخه ده خو په خاصه توګه بیا چې هغوی ضعیفه او بوډاګان شي نو په قران او حدیث کې د هغوی خدمت او تسلي باندې خاص زور ورکول شوی دی.

په قران کریم کې ارشاد دی:

وَقَضٰى رَبُّكَ اَلَّا تَعْبُدُوْا اِلَّآ اِيَّاهُ وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا اِمَّا يَبْلُغَنَّ عِنْدَكَ الْكِبَرَ اَحَدُهُمَا اَوْ كِلٰهُمَا فَلَا تَقُلْ لَّهُمَا اُفٍّ وَّلَا تَنْهَرْهُمَا وَقُلْ لَّهُمَا قَوْلًا كَرِيْمًا

وَاخْفِضْ لَهُمَا جَنَاحَ الذُّلِّ مِنَ الرَّحْمَةِ وَقُلْ رَّبِّ ارْحَمْهُمَا كَمَا رَبَّيَانِي صَغِيرًا. (بنى اسرائيل ۲۳-۲۴)

**ترجمه**: او ستا رب حکم کړی دی چي د هغه نه پرته د بل چا عبادت مه کوئ او د مور او پلار سره ښه سلوک کوئ او که له دوی څخه یو یا دواړه ستا په ژوند کي وزوړوالي ته ورسېدل نو هغوی ته د اُف کلمه هم مه وایه، او مه یې رټه او ادبناکه د عزت خبره ورته کوه، او د دوی دواړو لپاره د عاجزۍ وزر ښکته کړه او ووایه ای ربه زما! مهرباني او بخښنه ورباندي وکړه لکه څرنګه چي زما په وړکتوب کي یې زما پالنه کړې ده.

د زوړوالي او بوډاتوب په وخت کي د مور او پلار په خدمت باندي له دې کبله ډېر زور اچول شوی دی چي عموماً هغوی په دغه حالت کي و اولاد ته د کومي جسماني یا مالي ګټي رسولو صلاحیت نه لري، له دې امله ځیني مفاد پرسته خلک په داسي مهال د هغوی

سره اړیکي وشلوي دغه رنګه د بوډاګانو په حالت کي ځیني وختونه په هغوی کي خشکیت پیدا شي له دې سببه د هغوی خبري ناخوښي وي له دې سببه قران پاک ودې ته د توجه اړولو هڅي وکړې چي په داسي حالت کي فکر وکړي چي ستا د کوچني والي او وړکتوب کي هغوی ستاسي په خاطر څومره محنت زغملی او ستاسي څومري ناز او نخرې وړي دي نو اوس ستاسو فریضه ده چي د هغوی ناز واخلی او د دوی په ناخوښه خبرو باندي صبر وکړی او ورسره په ښه سلوک کولو کي کومه کمي رانشي.

ځیني وختونه خلګ د مور او پلار په ژوند کي د هغوی په خدمت او ښه چلن څخه غافله وي خو کله چي هغوی وفات شي نو تأسف کوي چي مور په ژوندون کي د هغوی خدمت ونه کړ اوس دغه موقع له لاسه ولاړه، له دې امله د هغوی په ژوند کي ددې نعمت قدر پېژندل په کار دی.

خوبیا هم دمور او پلار د وفات نه وروسته د هغوی

ســره د ښــه ســلوک فضـيلت ولاس تــه راوړلـو دروازه بالکل نه ده بنده شوې، حضرت ابواسيد رضي الله عنه روايت کوي چې مور يوه ورځ د حضرت محمد صلى الله عليه وسلم سره ناست ؤ چې د بنوسلمه يو سړی راغلی او پوښتنه يې وکړه، چې "يا رسول الله!" آيا زما د مور او پلار د مرګ څخه وروسته هم کومه داسې طريقه پاتـه شوې ده چې پـه هغـې سره زه ورسـره ښـه ښـه چلـن وکـړم؟ نـو حضـرت محمد صلى الله عليه وسلم وفرمايل: نَعَمْ الصَّلاَةُ عَلَيْهِمَـا وَالاِسْـتِغْفَارُ لَهُمَا وَانْفَاذُ عَهْدِهِمَا مِنْ بَعْدِهِمَا وَصِلَةُ الـرَّحِمِ الَّتِـى لاَتُوْصَلُ اِلاَّ بِهِمَا وَاِكْرَامُ صَدِيْقِهِمَا.

**ترجمــه**: "هـو! د هغـوی پـه حـق کـې دعـا کـول، د هغوی لپـاره اسـتغفار کول د هغـوی وروسـته د هغـوی کړل شوې وعده پوره کول او د کومو قرابتونو اړيکې چې د هغوی سره دي د هغوی سره صله رحمي کول او د هغوی د دوستانو اکرام کول". (ابوداؤد)

په دغـه حديث کې حضرت محمـد صلى الله عليه وسلم دمرحومو مور

او پلار سره د ښه چلن د فضيلت د لاس ته راوړلو طريقې بيان کړي دي چي ورباندي ټوله عمر عمل کېداى شي.

## (۲٦) د مور او پلار د قريبانو او دوستانو سره ښه سلوک کول:-

څرنګه چي مخکني حديث نه معلوميږي چي د مور او پلار سره ښه چلن کول ډېر د ثواب عمل دى دغه ډول د مور او پلار د قريبانو او دوستانو سره ښه ګزاره کول هم ډېر فضيلت لري، حضرت عبدالله بن عمر رضى لله عنهما روايت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايي: اِنَّ اَبَرّ الْبِرِّ اَنْ يَّصِلَ الرَّجُلُ وُدَّ اَبِيْهِ.

**ترجمه**: د ډېرو نيکيو نه يوه نيکي داده چي انسان د خپل پلار د محبت د خلګو سره اړيکي وساتي. (مسلم)

د حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه شاګرد عبدالله بن

سره اړیکي وساتي. (مسلم)

له دې امله په خپل اعمال نامه کي د نیکیو د زیاتوب یوه ښه طریقه داده چي د مور او پلار د قریبانو دوستانو سره اړیکي وپالل شي او د هغوی سره ښه ګزاره وشي.

## (۲۷) د ښځي او خاوند په خپل منځ کي ښه ګزاره کول:-

د خاوند او ښځي یو له بل سره ښه چلن کول، د ضروریاتو یې خیال ساتل، د هغه سره ښه په خندا سره وخت تېرول او دې په ترشو خبرو باندي صبر کول هم ډېر د ثواب کار دی، د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی:

اَکْمَلُ الْمُؤمِنِیْنَ اِیْمَانًا اَحْسَنُهُمْ خُلْقًا وَخِیَارُکُمْ خِیَارُکُمْ لِنِسَاءِ هِمْ. (ترمذي)

**ترجمه**: په مسلمانانو کي به کامل ایمان د هغو خلکو دی چي د اخلاقو په اعتبار سره تر ټولو ښه وي

سره اړیکي وساتي. (مسلم)

له دې امله په خپل اعمال نامه کي د نیکیو د زیاتوب یوه ښه طریقه داده چي د مور او پلار د قریبانو دوستانو سره اړیکي وپالل شي او د هغوی سره ښه گزاره وشي.

## (۲۷) د ښځي او خاوند په خپل منځ کي ښه گزاره کول:-

د خاوند او ښځي یو له بل سره ښه چلن کول، د ضروریاتو یې خیال ساتل، د هغه سره ښه په خندا سره وخت تېرول او ددې په ترشو خبرو باندي صبر کول هم ډېر د ثواب کار دی، د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی:

اَكْمَلُ الْمُؤْمِنِيْنَ اِيْمَانًا اَحْسَنُهُمْ خُلْقًا وَخِيَارُكُمْ خِيَارُكُمْ لِنِسَاءِ هِمْ. (ترمذي)

**ترجمه**: په مسلمانانو کي به کامل ایمان د هغو خلکو دی چي د اخلاقو په اعتبار سره تر ټولو ښه وي

او په تاسي کي ښه خلک هغه دي چي د خپلو ښځو سره ښه وي.

هغه حديث وړاندي بيان شوی دی چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: چي کوم خوړک تاسي د خپلي ښځي په خوله کي ورکړی هغه باندي هم تاسي ته ثواب درکول کيږي بلکي په يو حديث کي راغلي دي چي د خاوند او ښځي په خپل منځ کي کوم جنسي عمل کوی پر دې باندي هم ثواب شته.

ځيني معززو اصحابانو وپوښتل چي يا رسول الله! موږ خپل نفساني غوښته تر سره کړو، ايا په دې باندي هم ثواب شته؟ ده مبارک وفرمايل: تاسي دا راته ووايا ست چي يو څوک دغه غوښتنه په حرامه طريقې سره وکړي نو ګناه نه لري؟ (بالکل يې لري) نو کوم څوک چي په حلاله طريقه سره وکړي هغه ته به اجر ورکول کيږي. (مسلم)

بلکي په يو حديث کي خو دا راغلي دي چي کله سړی وکور ته راستون شي او خپل ښځه د محبت په

نظر سره ووینې او ښځه خاوند ته د محبت په نظر سره وګوري نو الله ﷻ دواړو ته د محبت په نظر سره ګوري.

خاوند او ښځه څرنګه چې هر وخت سره یو ځای اوسیږي او تر اوږدې مودې پورې یو ځای ژوند تېره وي له دې امله کله نا کله یو له بل سره خفه کېدل یو فطري خبره ده خو که دغه خفګیان په جنګ او جګړه یو له بل ظلم او زیاتوب ذریعه وګرځول شي نو د دنیا خوشحالي هم ختمیږي او د خاوند او ښځې تر منځ د ښه سلوک اجر او ثواب هم ضائع کیږي له دې امله الله ﷻ او رسول الله ﷺ د داسې حالاتو لپاره ډېر زرین قانون او دستور راکړی دی چې خلاصه یې داده چې د کومو خبرو نه انسان خفه شي فقط دغه ته مه ګوره دا هم فکر وکړه چې د کوم چا په ناخوښه خبرو سره خفه کیږي په هغه کې ډېر ښه صفتونه هم شته دغو ښو صفتونو ته په کتلو سره به خفګیان کې یقینًا لږ والی

راځي د الله ﷻ ارشاد دی:

فَاِنْ كَرِهْتُمُوهُنَّ فَعَسٰى اَنْ تَكْرَهُوْا شَيْئًا وَيَجْعَلَ اللّٰهُ فِيهِ خَيْرًا كَثِيرًا. (النساء ۱۹)

**ترجمه**: نو که تاسي دغه ښځي نه خوښوی نو ښايي چي تاسي يو شی نه خوښوی حال دا چي الله ﷻ به په هغه کي خير ګرځولی وي.

او په يو حديث کي راغلي دي چي حضرت محمد ﷺ فرمايي: لَايَفْرَكُ مُؤْمِنٌ مُؤْمِنَةً اِنْ كَرِهَ مِنْهَا خُلُقًا رَضِيَ مِنْهَا آخَرَ.

**ترجمه**: هيڅ يو مؤمن دی د مؤمني ښځي نه په کلي ډول بغض نه ساتي که يې يو عادت ناخوښه وي خو نور عادتونه به يې خوښ وي.

که خاوند او ښځه په دغه اصولو باندي عمل وکړي او يو له بله په محبت سره ژوند تېر کړي او يو له بله په ښه ګزاره سره هڅي او کوښښ وکړي نو به د دوی دغه

کورنی ژوندون د خوشحالیو ځخه ډک شي او د ښه چلن له کبله به د دوارو په اجر او ثواب کي هم ټوله ژوند زیاتوب وشي.

## (۲۸) صله رحمي:-

د قریبانو سره ښه چلن کولو ته "صله رحمي" ویل کیږي او صله رحمي کول هم الله جل جلاله ډېره خوښوي او ددې کوونکي ته ډېر ثوابونه ورکوي، قرآن کریم هم په ډېرو آیتونو کي د صله رحمي امر کړی دی او ددې فضائل یې بیان کړي دي لکه چي فرمایي:

وَبِالْوَالِدَيْنِ اِحْسَانًا وَبِذِى الْقُرْبٰى. (النساء ۳۶)

**ترجمه**: او د مور او پلاره سره ښه کوئ او د قریبانو سره ښه کوئ.

او ارشاد دی: وَاتَّقُوْا اللهَ الَّذِىْ تَسَاءَلُوْنَ بِهِ وَالاَرْحَامَ. (النساء)

**ترجمه**: او د الله ځخه ووېرېږئ چي تاسي دده په

ذریعه یو له بله د حقونو غوښتني کوئ او د قریبانو د حقوقو خیال وساتئ.

او د حضـرت ابـوهریره ﷺ څخـه روایـت دی چـي حضرت رسول اکرم ﷺ فرمایلي دي:

مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ.

**ترجمه**: کوم څوک چي په الله او د اخرت په ورځي ایمان لري هغه ته پـه کار ده چي د خپلو قریبانو سره صله رحمي وکړي. (بخاري، مسلم)

او د حضـرت انـس ﷺ روایـت دی چـي حضـرت محمد ﷺ فرمایلي دي:

مَنْ اَحَبَّ اَنْ يُبْسَطَ لَهُ فِي رِزْقِهِ وَيُنْسَأَلَهُ فِي اَثَرِهِ فَلْيَصِلْ رَحِمَهُ. (بخاري، مسلم)

**ترجمه**: کوم څوک چي دا غـواړي چي پـه رزق کي يې پراخي وشي او عمر يې زيات وي هغه ته پـه کار ده چي د خپلو قریبانو سره صله رحمي وکړي.

د صله رحمي مطلب دادی چي په ښه طریقه ورسره مخامخ شي د هغوی په درد او تکلیف کي برخه واخلي، هغوی که وکومک ته اړ شي نو په جایزه طریقه ورسره کومک وشي.

خو د صله رحمي په اړه څو خبري همېشه په ذهن کي لرل په کار دي.

(۱) ځیني خلګ د قریبانو مراعت تر دغه اندازې کوي چي ددې کار لپاره د ګناهونو د کولو نه هم ډډه نه کوي او خپل دغه عمل د "صله رحمي" برخه ګڼي مثلاً د قریبانو په اصرار باندي په ګناهونو کي ګډون کول، د هغوی ناروا سفارښت کول، یا وهغه ته داسې ملازمت (نوکري) ورګټلې چي د هغه دی مستحق نه دی، دا یاد ولرئ! چي دغه خبري هیڅکله جواز نه لري او د صله رحمي مطلب دا هیڅکله نه دی چي د قریبانو له خاطره یا د هغوی په مروت کي ګناهوي وشي له دې کبله هر کله چي کوم قریب د یو ناجایز کار په اړه در نه ووایي نو د هغه نه په نرمي سره معذرت غوښتل په

کار دي.

(۲) دوهمه خبره داده چي "صله رحمي" هغه وخت د ثواب باعث وي چي ددې مطلب د خپلو قريبانو خوشحاله کول د الله ﷻ د رضا لپاره وي که خالص بدله، رياکاري او د رواجونو پابندي سره کوم کار وشي نو پر دې باندې "د صله رحمي" فضيلت حاصلېدل مشکل دی، زموږ ټولنه دغه وخت د رواجونو په رسۍ او تار تړلې ده، د دوستانو او قريبانو سره په معاملاتو کي ډېره دغه خبره په نظر کي نيول شوې وي که مي داسي ونه کړل نو په قوم او خاندان کي به مي پزه پرېشي، نو فقط د رسم د پوره کولو لپاره ډېر کارونه کيږي، په زړه کي يې کول نه غواړي (خو د مجبورۍ او رسم له امله يې کوي) ددغه شان فکرونه ځخه پرهېز کول په کار دي او د کوم قريب سره چي کومه د نيکۍ معامله وشي په هغه کي د الله ﷻ د رضا او خوشحالۍ نيت دي وکړي او هر عمل دي په ښه خوشحاله زړه کوي فقط د رسم او شرم

له کبله د کوم کار د کولو نه بشپړه پرهېز په کار دی.

څرنګه چې "صله رحمي" خالص د الله ﷻ د رضا لپاره په کار ده له دې امله بلې لورې ته ددې د بدلې انتظار کول هم نه دی په کار او که د مقابل لورې نه ښه جواب درنه کول شي بیا هم "صله رحمي" پرېښول نه دی په کار او په حقیقت کې دغه خبره ددې نښه ده چې "صله رحمي" د الله لپاره کول په کار ده او که خالص د ریاکارۍ یا د نامه او شهرت لپاره، لکه د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی:

لَيْسَ الْوَاصِلُ بِالْمُكَافِي وَلٰكِنَّ الْوَاصِلَ الَّذِيْ اِذَا قُطِعَتْ رَحِمُهٗ وَصَلَهَا. (بخاري)

**ترجمه**: هغه سړی صله رحمي کوونکی نه دی چې د نورو خلکو سره په بدله کې څه ورسره وکړي بلکې صله رحمي کوونکی هغه دی چې نور ده د قرابت او دوستۍ حق تلفي وکړي بیا هم دی ورسره صله رحمي وکړي.

او حضرت ام کلثوم بنت عقبه رضی الله عنها روايت کوي چي حضرت رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي:
اَفْضَلُ الصَّدَقَةِ الصَّدَقَةُ عَلَى ذِی الرَّحْمِ الْكَاشِحِ.

**ترجمه**: تر ټوله افضله صدقه هغه ده چي وکينه او بغض کوونکی قريب ته ورکول شي.

(حاکم وطبراني الترغيب والترهيب. مخ۱۳ ټوک ۴)

کله چي د يو چا سره د قريبانو له لوري ښه چلن نه کيږي دغه وخت ورسره ښه سلوک کول په حقيقت کي د صله رحمي کمال دی او پر دې باندي بې شمېره د اجر او ثواب وعدې شوي دي.

حضرت ابوهريره رضي الله عنه فرمايي: چي يو سړي ونبی ﷺ ته عرض وکړ چي يا رسول الله! زما يو څه قريبان دي زه ورسره صله رحمي کوم خو هغوی زما حق تلفي کوي، زه ورسره ښه چلن کوم او هغه زما سره بد او ناوړه چلن کوي، زه ورسره د حلم معامله کوم او هغه راسره جنګ کوي، نو رسول الله ﷺ وفرمايل: که حقيقت هم دغه

شان دی نو ګواکه ته په دوی باندي تودې ایرې خوري او د الله ﷻ له لوري به همېشه ستا سره یو کومک کوونکی وي. (مسلم)

یعني هغوی په خپل عمل سره دوږخ رانیسي او تا ته به کوم تاوان درونه رسوي بلکي د الله ﷻ له لوري به ستا سره د هغوی په خلاف کومک کیږي.

## (۲۹) د همسایه سره ښه رویه کول:-

الله ﷻ د همسایه ډېر حقوق ټاکلي دي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی: حَتّٰی ظَنَنْتُ اَنَّهُ سَیُوَرِّثُهُ.

(بخاري، مسلم عن ابن عمر وعائشه)

**ترجمه**: جبرائیل علیه السلام وماته د همسایه په اړه دومره ډېر نصیحت کوي چي زما دا فکر شو چي ښایي هغه په میراث کي هم حق ورکړي.

حضرت ابوشریح رضي الله عنه روایت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي: مَنْ کَانَ یُؤْمِنُ بِاللّٰهِ وَالْیَوْمِ

الاَخِرِ فَلْيُحْسِنْ اِلٰى جَارِهٖ.

**ترجمه**: کوم څوک چې پر الله ﷻ او د اخرت په ورځې ایمان لري هغه ته په کار ده چې د خپل همسایه سره ښه چلن او رویه وکړي. (مسلم)

او حضرت ابوهریره رضي الله عنه بیا د رسول اکرم ﷺ دغه ارشاد نقل کړی دی:

مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الاَخِرِ فَلَايُوْذِىْ جَارَهٗ.

**ترجمه**: کوم څوک چې پر الله او د اخرت په ورځې ایمان لري هغه ته په کار ده چې خپل همسایه ته تکلیف ونه رسوي. (بخاري، مسلم)

د همسایه تر ټولو غټ حق دا دی چې په خپل هر کار کې ددې خبرې بشپړ خیال وساتل شي چې د خپله ځانه څخه وهغه ته تکلیف ونه رسیږي ددې څخه پرته د اړتیا په وخت د هغه کومک کول، کله ناکله ورته کوم سوغات ورکول، د هغه په تکلیف او غم کې ګډون کول، دغه ټولې خبرې د ثواب باعث دي، که هغه اړ

وي نو مالي كومك ورسره كول په كار دی، ولي چي د همسايه لپاره دا ضروري نه ده چي هغه په معاشي او اقتصادي اعتبار سره برابر وي، كه څه غريبان همسايه وجود ولري نو هغه هم همسايه ګان دي نو د هغوی حقوق په دې اعتبار زيات دی چي د هغوی خير معلومول تر نورو ډېر ضروري دي، كه يو همسايه وږی وي نو هغه ته ډوډۍ وركول فقط دا نه چي ثواب لري بلكي فرض ده، دغه شان همسايه كه كافر وي نو بيا هم ورسره ښه سلوک كول په كار دی، حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما يو ځل يوه بزه حلاله كړه، دده په همسايه ګانو كي يو يهودي هم اوسېدی نو ده په وارو وارو تاكيد كوی چي ويهودي همسايه ته هم غوښي وروليږي. (ابوداؤد، ترمذي)

## (۳۰)ښه اخلاق او ورين تندی لرل:-

د خلګو سره په ورين تندي او ښو اخلاقو سره ليدل هم والله تعالی ته ډېر محبوب عمل دی او ورباندي

ثواب ورکول کیږي حضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ارشاد روایت کړی دی چي:

لَاتَحْقِرَنَّ مِنَ الْمَعْرُوْفِ شَيْئًا وَلَوْ اَنَّ تَلْقٰى اَخَاكَ بِوَجْهٍ طَلَقٍ. (مسلم)

**ترجمه**: د نیکي هیڅ عمل بېکاره مه ګڼه، که څه هم هغه ښه عمل دادی چي ته د خپل ورور سره په ورین او خوشحاله مخ سره ووینې.

په دغه حدیث کي نبی صلی الله علیه وسلم د نورو سره په ورین تندي ملاقات کول یوه نیکي ګڼلې ده، او دا یې هم ورسره وفرمایل: چي دغه نیکي کوم لږ یا بېکاره عمل مه ګڼئ مطلب دا چي پر دې باندي هم ستاسي په اعمال نامه کي ډېر ثواب زیاتېدلای شي.

د حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه روایت دی چي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

مَامِنْ شَيْءٍ اَثْقَلُ فِيْ مِيْزَانِ الْعَبْدِالْمُؤْمِن يَوْمَ الْقِيَامَةِ

حُسنِ الْخُلُقِ وانَّ اللهَ يُبْغِضُ الْفَاحِشَ الْبَذِيَّ.

**ترجمه**: د قيامت په ورځ د مومن بنده په ترازو
ې هيڅ شی به هم تر ښو اخلاقو زيات وزني نه وي او
ه جَلَّالَهُ ته فحش ويونکی او فضول (بېکاره) خبري
ونکي سړی سخت ناخوښه دی. (ترمذي)

او حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت کوي چي د حضرت
حمد ﷺ نه پوښتنه وشوه چي تر ټولو زيات په جنت
ـي داخلوونکی کوم شوی دی؟ نبی ﷺ وفرمايل:
قوی او ښه اخلاق. (ترمذي)

په يو بل روايت کي حضرت ابوهريره رضي الله عنه د حضرت
محمد ﷺ دغه ارشاد بيانوي:

اَكْمَلُ الْمُؤْمِنِينَ اِيمَانًا اَحْسَنُهُمْ خُلُقًا.

**ترجمه**: تر ټولو مؤمنانو ښه کامل مؤمنان هغه
خلک دي چي په دوی کي د اخلاقو په اعتبار سره تر
ټولو ښه وي. (ترمذي)

او حضرت عائشه صديقه رضى الله عنها روايت
کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: اِنَّ الْمُؤْمِنَ
لَيُدْرِكُ بِحُسْنِ خُلُقِهِ دَرَجَةَ الصَّائِمِ الْقَائِمِ.

**ترجمه**: مؤمن په خپل ښو اخلاقو سره د هغه سړي
ودرجي ته رسيږي چي روژه او لمونځ والا وي (يعني
نفل روژې ډېري نيسي او نفل لمونځونه ډېر کوي).

(ابوداؤد)

او د حضرت جابر رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت
محمد ﷺ فرمايلي دي:
اِنَّ مِنْ اَحَبِّكُمْ اِلَيَّ وَاَقْرَبِكُمْ مِنِّى مَجْلِسًا يَوْمَ
الْقِيَامَةِ اَحَاسِنُكُمْ اَخْلَاقًا. (ترمذي)

**ترجمه**: ستاسي څخه چي کوم خلک وماته ډېر
محبوب دي او د قيامت په ورځ په مجلس کي وماته
تر ټولو نژدې دي هغه خلک دي چي ستاسي څخه د
اخلاقو په اعتبار سره تر ټولو ښه وي.

په دغه ټولو احاديثو کي د کوم ښه اخلاقو چي ستر فضيلتونه بيان شوي دي هغه که څه هم يو پراخ مفهوم لري خو د خلکو سره په ورين او خوشحاله تندي سره ليدل ددې يوه مهمه برخه ده او پر دې باندې هم دغه فضائل صادق راځي.

## (۳۱) دسفر د ملګري سره ښه چلن کول:-

څرنګه چي الله تعالی د کور د همسايه ډېر حقوق ثابت کړي دي دغه رنګه د سفر د ملګري هم ډېر حقوق بيان کړي دي، د سفر د ملګري څخه مراد هغه څوک دی چي ورسره مخکي کومه پېژندنه نه وي خو د سفر په دوران کي ورسره يو ځای شوی وي، مثلاً په بسانو، ريل ګاډي او په (طياره) کي ځان ته نژدې ناست سړی، دې ته د قران کريم په اصطلاح کي "صَاحِبٌ بِالْجُنُبِ" ويل شوی دی يعني هغه د سفر انډيوال چي د لږ وخت لپاره همسايه جوړ شوی وي

دينار رحمه الله وايي: چي حضرت عبدالله بن عمر رضي الله عنه
يو ځل مکې ته روان ؤ، هسي خو پر يو اوښي سپور ؤ
خو يو خر هم ورسره ؤ، کله چي د اوښي د سواري نه به
ستړی کېدی نو لږ وخت به يې پر خره باندي سواري
وکړل په دې مهال يو صحرائی سړی په لاره کي ورسره
يو ځای شو حضرت ابن عمر رضي الله عنه دده او دده پلار نوم
وپوښتی کله چي هغه نومان وروښول نو ده خپل خر
وده ته ورکړی او خپله لنګوټه يې د سره نه خلاصه کړه
او په سوغات کي يې ورکړه، انديوالانو يې ورته
وويل: چي صحرايي خلګ خو په لږ شي هم خوشحاله
کيږي تا وده ته دومره ګران شيان ولي ورکړل؟ حضرت
عبدالله بن عمر رضی الله عنهما وفرمايل: چي ددغه
سړي پلار زما د پلار دوست ؤ او ما د حضرت
محمد ﷺ نه اورېدلي چي د ډېرو ښو عملونو نه يو ښه
عمل دادی چي انسان دخپل پلار د محبت له خاوندانو

کي کومـه لاره نشـتـه، پـه دې وجـه د سـفر وملګري تـه تکليف رسـولو ګنـاه ډېره درنـه ګنـاه ده چي معـافي يې ډېره ګرانه ده.

بل لوري تـه کـه د سفر د ملګري سره ښـه چلـن وشي تر خپل طاقته د ايثـار نـه (وبـل تـه ترجيح ورکول) کـار واخيستل شي او وهغه تـه د ارام او راحت رسـولو هانـد او هځي وشي يا لږ تر لږه ورسره د وريـن تنـدي معاملـه وشي نو دغـه ډېر د ثواب کـار دی او پـه لږ فکر سره د ثواب يوه غټه خزانه د ځان لپاره تياره ولای شي.

## (۳۲) د الله لپـاره د يـو چـا سـره ملاقات کول:-

د يـو مسـلمان سره خـالص د الله ﷻ د خوشـحالي لپاره وملاقات تـه تلل هم ډېر د فضيلت عمل دی، او د الله ﷻ لپـاره د تللو مطلب دادی چي دده سره د کتلو موخه کومه دنيوي ګټه لاس تـه راوړل نـه وي بلکي يـا خو له دې کبله ورسره کتنه وشي چي ښه سړی دی، يا

یو عالم دی او دده په صحبت سره خپله اصلاح کول مقصود وي یا له دې امله ورسره ولیدل شي چې دده زړه خوشحاله شي او د مسلمان په زړه خوشحاله کولو باندې الله ﷻ راضي کیږي په دغه صورت کې هم دغه ملاقات د الله ﷻ لپاره ګڼل کیږي او انشاء الله اجر به ورکول کیږي.

د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي:

مَنْ عَادَ مَرِيضًا اوزاراخا لَهُ فِى اللهِ نَادَاهُ مُنَادٍ بِانْ طِبْتَ وَطَابَ مَمْشَاكَ وَتَبَوَّأْتَ مِنَ الْجَنَّةِ مَنْزِلاً.

**ترجمه**: کوم څوک چې د یو ناروغه پوښتنه وکړي یا د یو ورور سره د الله ﷻ د خوشحالۍ لپاره ملاقات وکړي، وهغه ته یو (غیبي) اواز کوونکی اواز کوي: چې ته هم مبارک! ستا تلل هم مبارک او تا د جنت په یو منزل کې د ځان لپاره کور جوړ کړ.

(ترمذي، وقال حسن)

له دې حدیث نه بریښي چې د یو مسلمان سره د ثواب په نیت کتل هم په اعمال نامه کې ډېر زیاتوب راولي، خو دا په یاد ولرئ چې دغه حکم د هغو خلکو لپاره دی چې په ملاقات کولو کې کوم دیني تاوان نه وي ددې په خلاف که دغه اندېښنه وي چې دده سره په لیدلو سره په یو ګناه کې اخته کیږي یا دده د ناوړه صحبته پر ده هم اثر کیږي یا غیبت او داسې نور کول یا اورېدل کیږي یا په بې فایدې خبرو کې وخت ضائع کیږي نو په داسې صورت کې ملاقات کولو او مجلس څخه ځان ژغورل ښه دي.

## (۳۳) د مېلمه اکرام کول:-

د مېلمه عزت کول او مناسب خاطر ساتل هم د ایمان د څانګو څخه یوه مهمه څانګه ده چې په اسلام کې یې ډېر تاکید راغلی دی، د حضرت ابوهریره رضي الله عنه څخه روایت دی چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

مَنْ كَانَ يُؤْمِنُ بِاللهِ وَالْيَوْمِ الآخِرِ فَلْيُكْرِمْ ضَيْفَهُ.

**ترجمه**: کوم څوک چې په الله او د آخرت په ورځې ایمان لري هغه دې د خپل مېلمه عزت وکړي.

(بخاري، مسلم)

هو په دغه ټولو خبرو کې خالص رسمونو یا د نامه او شهرت او تکلفاتو نه ډډه کول په کار ده د مېلمه د عزت کولو لومړی مطلب دادی چې وهغه ته د ارام رسولو فکر وشي له دې امله که وهغه ته د ډوډی تکلیف وي نو صرف د رسم او رواج په خاطر په ډوډی خوړلو باندې اصرار کول د اکرام خلاف خبره ده په داسې صورت کې دده عزت هغه دی چې دده د ارام او طبیعت په نظر کې ونیول شي.

بلې خوا ته د مېلمه لپاره هم ضروري ده چې هغه پر کور والا باندې غیر ضروري بار وانه چوي او دومره وخت پاته نه شي چې وربانديې تکلیف شي د مسلم شریف په یو حدیث کې ددې ښکاره منع راغلې ده.

## (۳۴) د لارې څخه ضرري شي

## ليري کول:-

که په لاره کې کومه ګندګي پرته وي يا کوم داسي شی وي چي ولاړويانو ته د تکليف رسېدو خطره وي لکه زوزان، د لارې د بندېدو شی يو داسي پوستکی چي ورباندي د ښويدو انديښنه وي دغه شيان د لارې څخه ايسته کول ډېره غټه نيکي ده، د حضرت ابوهريره رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي:

اَلْاِيْمَانُ بِضْعٌ وَّسَبْعُوْنَ شُعْبَةً فَاَفْضَلُهَا قَوْلُ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَأَدْنَاهَا اِمَاطَةُ الْاَذٰى عَنِ الطَّرِيْقِ.

(بخاري، مسلم)

**ترجمه**: د ايمان د اويا څخه زياتي څانګي دي، په دې کې تر ټولو غوره د لا اله الا الله اقرار کول دي، او کمه څانګه يې د لارې نه تکليف (مرداري) ليري کول

دي.

په يو بل حديث كي د حضرت محمد ﷺ دغه ارشاد حضرت ابوهريره رضي الله عنه بيان كړى دى:

وَتُمِيطُ الاذٰى عَنِ الطَّرِيْقِ صَدَقَةَ. (بخاري، مسلم)

**ترجمه**: او د لاري نه مرداري (يا د تكليف شى) ليري كړي نو دغه هم صدقه ده (يعني د صدقې او خيرات په ډول ثواب وركول كيږي).

او حضرت عائشه رضى الله عنها روايت كوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي:

اِنَّهُ خُلِقَ كُلُّ انْسَانٍ مِنْ بَنِى آدَمَ عَلٰى سِتِّيْنَ وَثَلَاثِمائَةِ مُفْصَلٍ فَمَنْ كَبَّرَ اللّٰهَ وَحَمِدَاللّٰهَ وَهَلَّلَ وَسَبَّحَ اللّٰهَ وَاسْتَغْفَرَاللّٰهَ وَعَزَلَ حَجَرًا عَنْ طَرِيْقِ النَّاسِ اَوْشَوْكَةً اَوْعَظْمًا عَنْ طَرِيْقِ النَّاسِ أَوْامَرَ بِمَعْرُوْفٍ أَوْنَهٰى عَنْ مُنْكَرٍ عَدَدَ السِّتِّيْنَ وَالثَّلَاثِمائَةِ فَاِنَّهُ يَمْشِى

يَوْمَئِذٍ وَقَدْ زَحْزَحَ نَفْسَهُ عَنِ النَّارِ.

**ترجمه**: د بني ادم د هر انسان (په صورت کي) درې سوه شپېته بندونه پیدا شوي دي نو کوم سړی چي اَللّٰهُ اَكْبَرْ ولولي، د الله حمد بیان کړي او لَآ اِلٰهَ اِلَّا الله او سُبْحَانَ اللّٰهِ ذکر وکړي او د الله نه استغفار وغواړي او د خلکو د لارو څخه کومه ډبره لیري کړي یا کوم زوز یا هډوکی د لاري نه ایسته کړي یا د یو ښه عمل حکم (ښوونه) وکړي یا د ناوړه کاره څوک منع کړي (او دغه ډول ښه عملونه) د دروسوو شپېتو تر شمارې پوري ورسېږي نو هغه به دغه ورځ خپل ځان د دوږخ له اوره لیري کړي. (مسلم)

په یو بل حدیث کي حضرت محمد ﷺ دغه واقعه بیان کړې چي یو سړی په لاره روان یو اغزن ښاخ يې په ځمکه پروت ولید نو يې د خلګو د تکلیف څخه د ساتلو لپاره د لاري نه لیري کړی نو الله جَلَّ جَلَالُهُ ددہ دغه عمل قبول کړی او ددہ مغفرت يې وکړ په یو بل روایت

کي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي چي ما دغه شان سړی په جنت کي د تلو راتلو په حالت کي ليدلی دی.

(مسلم)

له دغو ټولو احاديثو څرګنده بريښي چي د لارو د صفا او پاکو ساتلو او خلګ د تکليف نه ساتل په اسلام کي څومره اهميت دی چي يو اغزن ښاخ د لاري ګوښه کول چي يو وړوکی عمل ښکاري دومره ورباندي د اجر او ثواب وعده شوې ده او کله چي تکليف والا شي د لاري څخه د ګوښه کولو دومره ترغيب ورکړه شوی دی نو لاره په مرداري ککړه ول چي ولاروپانو ته تکليف وشي څومره غټه ګناه ده له دې نه ددې اندازې کېدای شي چي ولارويانو ته د تکليف پيدا کولو په شيانو کي دغه خبره هم راځي، چي خپل سواري (موټر، موټر سائيکل او داسي نور) داسي ځای ودرول شي چي د نورو سواريانو لاره بنده شي، يا په تللو کي ورته ستونزي پيدا شي، يا داسي بې قانونه موټر وچلول شي چي ونورو خلګو ته په کوم

طریقه سره تکلیف ورسیږي، دغه ټولي خبري ګناهوي دي او له دې نه ډډه (پرهېز) کول دومره ضروري ده لکه څرنګه چي د نورو کبیره ګناهونو څخه په کار ده.

دغه ډول د ترافیکو چي کوم قوانین ټاکل شوي دي ددې هدف په لارو کي نظم او ضبط پیدا کول دي او ددې پابندي فقط د قانون غوښتنه نه ده بلکي یوه دیني فریضه هم ده که ددې پابندي په دغه نیت سره وشي چي په دې سره په ټولنه کي نظم او ضبط راشي خلکو ته راحت ورسیږي او هغوی د تکلیف څخه د ساتلو کوښښ وشي نو پر دغه واړو اعمالو باندي انشاء الله اجر او ثواب ورکول کیږي او که ددغو قواعدو مخالفت وشي نو دوه چنده ګناه به وي یو خلکو ته د تکلیف رسولو او بل په نظم او ضبط کي د خنډ اچولو او د مسئولینو د احکامو د مخالفت کولو.

افسوس دی چي نن زمان دغه خبري ګناهوي نه ګڼل کیږي او ښه په ظاهره دینداره تعلیم یافته خلک هم په دغه شان ګناهونو کي بې باکه بوخت دي.

الله ﷻ دي موږ ټولو ته د دين ښه سمه پوهنه او ورباندي د عمل کولو توفيق رانصيب کړي. آمين

## (۳۵) د جنگ نه ډډه کول:-

جنګ او جګړه کول والله ﷻ ته سخت ناخوښه عمل دی، په قران پاک کي د جنګړه سړي ډېره بدي بيان شوي ده، او ددې په خلاف حلم، صبر کول او د جنګ نه ډډه کول الله ﷻ ډېر خوښوي او داسي سړي ته اجر او ثواب ورکوي حضرت عبدالله بن عباس رضي الله عنه روايت کوي چي يوځل حضرت محمد ﷺ د عبدالقيس قبيلې ويو سړي ته په خطاب کي وفرمايل:

اِنَّ فِيکَ خَصلَتَينِ يُحِبُّهُمَا اللّٰهُ اَلْحِلْمُ وَالاَناة.

**ترجمـه**: پـه تـا کـي دوه خويونـه داسي دي چي الله ﷻ يې خوښوي: حلم او زغم کول. (مسلم)

څرنګه چي يو سړی سره ددې چي پر حق باندي وي خالص د شر د ختمېدو او د جنګ نه د پرهېز په سبب

خپل حق پرېږدي يا صلح وکړي هغه ته حضرت محمد ﷺ د بر ستر زېرى ورکړى دى.

حضرت ابوامامه رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي:

اَنَازَعِيمٌ بِبَيتٍ فِى رَبضِ الْجَنَّةِ لِمَنْ تَرَکَ الْمِرَاءَ وَاِنْ كَانَ مُحِقًّا. (ابوداؤد)

**ترجمه**: زه وهغه سړي ته د جنت په څنډو کي د کور ورکولو ضمانت ورکوم چي جنګ پرېږدي که څه هم پر حق باندي وي.

د کوم سړي چي وجنت ته د رسولو بلکي په جنت کي د کور ورکولو ضمانت حضرت محمد ﷺ اخيستى وي د هغه د نېک بختى څومره غټ مقام دى الله جل جلاله دي دغه نعمت وټولو مسلمانانو ته ورکړي. آمين

## (۳٦) ديني مسئلې زده کول:-

د هر مسلمان په ذمه فرض ده چي هغه د دين دومره

معلومات زده کړي چې په هغه سره خپل د ورځني ژوند د اسلامي لارښوونو سره سم تېر کړي، د هر سړي مکمل عالم جوړېدل ضروري نه دي خو د ضرورت په اندازه ديني معلومات زده کول په هر مسلمان باندي فرض عين دي، لکه د لمانځه، روژې، حج او د زکٰوة ضروري مسئلې او څه ډول معاملات چې دده په ژوند کي راځي د هغه په اړه د حلال، او حرام، جايز او ناجايز احکامو او داسي نور پېژندل ضروري دي.

بيا چيري چې الله جَلَّ جَلَالُهُ د دين ضروري خبري زده کول ضروري ګڼلي هلته يې پر دغه عمل باندي ډېر د اجر او ثواب وعدې هم کړي دي، يعني د دين زده کول هر عمل يوه مستقله نيکي ده چې ددې ډېر فضيلتونه په قران او حديث کي راغلي دي، حضرت ابوالدرداء رَضِيَ اللهُ عَنْهُ روايت کوي چې حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمايلي دي:

مَنْ سَلَکَ طَرِيْقًا يَبْتَغِىْ فِيْهِ عِلْمًا سَهَّلَ اللهُ لَهُ

طَرِيْقًا اِلَى الْجَنَّةِ وَاِنَّ الْمَلٰئِكَةَ لَتَضَعُ اَجْنِحَتَهَا لِطَالِبِ الْعِلْمِ رِضًا بِمَا صَنَعَ. (ابوداؤد، ترمذي)

**ترجمه**: کوم سړی چي د دې هدف لپاره په یوه لاره باندي ولاړ شي چي د علم کومه مسئله زده کړي نو الله جل جلاله به ورته د جنت لاري اسانه کړي او د علم د طلب کوونکي لپاره د هغه په دغه عمل باندي د خوشحالۍ د ښکاره کولو لپاره ملائکي خپل وزرونه غوړه وي.

په دغه فضیلت کي د علم هغه طالبان خو راځي چي سمدلاسه د دیني علم د حاصلولو لپاره د خپلو کورونو څخه وتلي دي، خو کوم خلګ چي د بشپړ عالم دین جوړولو په نیت باندي نه بلکي د خپل اړتیا مطابق د دین کومي خبري د زده کړي لپاره چیري ځي یا د اړیدو په وخت د یو عالم یا یو مفتي څخه کومه مسئله معلومولو لپاره ځي یا په کوم وعظ او نصیحت کي په دغه نیت سره ګډون کوي چي د دین

خبري زده کړي امید دی چي انشاء الله داسي خلګ به
هم په دغه فضیلت کي برخمن وي، حضرت انس رضي الله عنه
روایت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي:

مَنْ خَرَجَ فِی طَلَبِ الْعِلْمِ فَهُوَ فِی سَبِیْلِ اللّٰه حتّٰی یَرْجِعَ. (ترمذي)

**ترجمه**: کوم سړی چي د علم په طلب کي د کوره ووزي نو هغه د الله په لاره کي دئ ترڅو چي بیرته راستون نه شي.

مطلب دا چي د دین کومي مسئلې د زده کړي لپاره چي کم پر مختګ وشي انشاء الله وربانديي د علم د طلب اجر او ثواب ورکول کیږي، تر دې اندازې چي د دې مقصد لپاره د مستند دیني او اصلاحي کتابونو پر مطالعې باندي هم د ثواب بشپړ امید شته، په دې شرط چي کتابونه مستند او صحیح وي چي د دې لپاره مناسبه داده چي د یو عالم څخه وپوښتل شي او د هغه په مشوره د کتابونو انتخاب وشي نو هر کله

چي د کومه مقامه څخه د دين د کومي مسئلې د زده کړي موقع پيدا شي غنيمت ګڼل په کار ده.

په دې سره په خپلو معلوماتو کي هم زياتوب راځي، د ژوند په سمولو کي هم کومک کيږي او په نېکيو کي جلا زياتوب راځي ولي چي علم داسي يو ناپايه درياب دی چي ددې کوم پای نشته، انسان چي څومره غټ عالم شي خو د نور علم طلب هغه ته هم وي او په کار هم ده، له دې امله په حديث کي راغلي دي چي کوم سړی د علم حريص وي د هغه نس هيڅکله نه مړيږي يعني هغه په هره مرحله کي د زيات علم په لټه کي وي او د نېکيو د حاصلولو دغه لړۍ هيڅکله نه ختميږي.

## (۳۷) ونورو خلګو ته دين ورزده کول:-

څرنګه چي د دين خبري خپل زده کول ډېر د ثواب کار دی دغه رنګه ويو چا ته د دين خبري ورزده کول تر

دې هم زيات د فضيلت عمل دى، په دې شرط چې
ددې نه مقصد د خپل علم او لويې ښکاره کول نه وي
بلکې ونورو ته د رسول هدف وي، حضرت ابو
امامه رضي الله عنه روايت کوي چې حضرت محمد ﷺ فرمايلي
دي: انَّ اللهَ وَمَلَائِكَتَهُ وَاَهْلَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ حَتَّى
النَّمْلَةَ فِى جُحْرِهَا وَحَتَّى الْحُوْتَ لَيُصَلُّوْنَ عَلَى
مُعَلِّمِى النَّاسِ الْخَيْرَ.

**ترجمه**: الله جل جلاله او د هغه ملکې او د اسمان او
ځمکې مخلوقات تر دې پورې چې په خپلو غارونو
کې اوسېدونکې مېږيان او تر دې پورې چې ماهيان پر
هغو خلکو رحمت لېږي چې وخلکو ته د خير او نيکې
خبرې وروښوي. (ترمذي)

او حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه روايت کوي چې
حضرت محمد ﷺ وحضرت على رضي الله عنه ته د خطاب کولو
په وخت وفرمايل: لَانْ يَّهْدِىَ اللهُ بِكَ رَجُلًا وَاحِدًا

خَيْرٌ مِنْ حُمُرِ النِّعَمِ. (بخاري، مسلم)

**ترجمه**: که الله ﷻ ستا په ذریعه ویو سړي ته هم هدایت وکړي نو دا ستا لپاره تر سرو اوښانو غوره او ښه ده.

"سره اوښان" په عربو کي لویه پانګه ګڼل کېده نو مطلب دا شو چي ستا د ښووني او روزني څخه که یو سړي ته هم هدایت وشي نو دغه ستا لپاره د دنیا تر یوې لویې سرمایې نه ښه ده.

نو هر کله چي ویو چا ته د دین د خبري ورښوولو موقع په لاس درشي نو یې غنیمت ګڼه او دغه فضیلت لاس ته راوړل په کار دی، په ځانګړې توګه د خپل کور والاؤ، ښځي او بچیانو ته د دین خبري او مسئلې ورښوول په کار دی چي دغه عمل د انسان په حق کي ډېره ستره صدقه جاریه ده.

## (۳۸) د مشرانو عزت کول:-

که څه هم د اسلام ... تعلیماتو په بنا کې اصل

فضيلت د تقوىٰ او د علم دى خو ورسره کشرانو ته دغه حکم شوى دى چي هغوى تر ځانو د مشرانو عزت وکړي تر دې چي رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي: لَيْسَ مِنَّا مَنْ لَّمْ يَرْحَمْ صَغِيْرَنَا وَيَعْرِفْ شَرَفَ كَبِيْرِنَا.

**ترجمه**: هغه سړى زموږ څخه نه دى چي زموږ پر کشرانو مهرباني ونه کړي او زموږ د مشرانو عزت ونه پېژني. (ابوداؤد، ترمذي)

په خاصه توګه بيا د کوم سړي چي وېښتان سفين شول د هغه د عزت او احترام په حديث کي ډېر غټ فضيلت راغلى دى حضرت ابوموسىٰ اشعرى رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: اِنَّ مِنْ اِجْلَالِ اللهِ تَعَالىٰ اِكْرَامُ ذِى الشَّيْبَةِ الْمُسْلِمِ.

**ترجمه**: دا د الله جل جلاله د تعظيم يوه برخه ده چي د سفينو وېښتانو والا مسلمان احترام وشي.

(ابوداؤد، ترمذي)

او د حضرت انس رضي الله عنه څخه روايت دى چې حضرت محمد ﷺ فرمايلي:

ما اكرم شابٌّ شيخًا لسنه الاّ قيّض الله له من يكرمه عند سنه. (ترمذي، وقال غريب)

**ترجمه**: کوم ځوان چي د يو سفين ږيري د هغه د عمر له کبله عزت کوي الله جل جلاله دده لپاره داسي خلک ټاکي چي دده په اخرني عمر کي دده عزت وکړي.

د حضرت محمد ﷺ عادت ؤ چي په يو وفد کي د لږ عمر سړي تر مشرانو مخکي خبري پيل کولي نو ده مبارک به تاکيد ورته کوى چي ومشر ته مخکي د خبري کولو نوبت ورکړه، له دي نه ثابتيږي چي د مشرانو د عزت او احترام نبى ﷺ څومره تاکيد کړى دى او پر دي يقينًا اجر او ثواب ورکول کيږي.

## (۳۹) داسلام د شعائرو تعظيم کول:-

هغه ټوله شيان چي د اسلام او مسلمانانو نښه ګڼل

کيږي هغه ته د اسلام شعائر ويل کيږي، مثلاً قران کريم، بيت الله شريف، مسجدونه، مقدس ځايونه، لمونځ، اذان او داسي نور، د دغه شعائرو احترام هم ډېره لويه نيکي ده.

د قران کريم ارشاد دی: وَمَنْ يُّعَظِّمْ شَعَائِرَ اللهِ فَاِنَّهَا مِنْ تَقْوَى الْقُلُوْبِ.

**ترجمه**: او کوم څوک د شعائر الله تعظيم (احترام) وکړي نو دغه عمل د زړونو د تقوی له امله ده.

## (۴۰) پر ماشومانو شفقت کول:-

پر وړو هلکانو شفقت کول د حضرت محمد ﷺ سنت دی لکه وړاندي چي بيان شول نبی ﷺ فرمايلي دي: چي کوم سړی زموږ پر کشرانو شفقت ونه کړي هغه زموږ څخه نه دی.

په حديث کي راغلي دي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: چي زه که د لمانځه کولو په دوران کي د

يو ماشوم د ژړا اواز اورم نو لمونځ لنډه وم چي داسي نه وي چي ددې ماشوم مور د خپل بچي د ژړا په اورېدلو سره غمجنه شي.

حضرت محمد ﷺ واړه هلوکان په غېږ کي اخيستل، هغوى به خوښول او ورسره به يې د ښه طبيعت خبري کولې دغه واړي خبري سنت دي او د سنتو د اتباع په نيت سره دغه ټوله کارونه کول ډېر ثواب لري.

## (۴۱) اذان کول:-

اذان د اسلام له شعائرو څخه دى او په احاديثو کي د اذان کولو ډېر فضيلتونه راغلي دي، د بخاري او د مسلم په يو حديث کي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دى که وخلکو ته د اذان د اجر او فضيلت صحيح حال معلوم شي نو به هر څوک د اذان کولو کوښښ وکړي او د ډېرو غوښتنو له امله به هسکه ورباندي وشي.

نن زمان عمومًا په مسجدونو کي مؤذن ټاکل کيږي

خو که یو سړي د مسجد نه پرته یو داسي ځای لمونځ کوي چیري چي د اذان اواز نه رسیږي نو هلته هم د لمانځه نه مخکي اذان کول سنت دی او په داسي وخت کي د اذان دغه فضیلت خامخا حاصلول په کار دی.

حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه یو ځل د عبدالرحمن بن صعصعه وزوی عبدالله ته وفرمایل: چي زه مو وینم چي ستاسي د بزو او صحراؤ سره ډېره مینه ده، کله چي تاسي د خپلو بزو سره یا په صحرا کي واوسی د لمانځه لپاره اذان کوی نو په اوچت اواز سره یې وکړئ ولي چي د مؤذن اواز تر کومه ځایه رسیږي د هغه ځای پیریان انسانان او هر هغه شی چي دغه اواز اوري هغوی ټول به د قیامت په ورځ د اذان کوونکي په حق کي شاهدي ادا کوي په دې ویلو سره حضرت ابوسعید خدري رضي الله عنه دغه هم وفرمایل: چي ما دغه خبره د رسول الله صلی الله علیه وسلم نه اورېدلې ده. (بخاري)

له دې نه اندازه کېدای شي چي د اذان کولو څومره

غټ فضیلت دی او د موقع په موندلو سره د دې فضیلت په لاس ته راوړلو سره هیڅکله کوتاهي نه ده په کار.

## (۴۲) د اذان جواب ورکول:-

د اذان ادب دادی چې کله اذان کیږي نو تر خپله وسه دي سړی پټه خوله شي، حضرت محمد ﷺ هم دې ټینګار کړی دی چې د اذان د هر لفظ جواب دي ورکړه شي، یعني کوم الفاظ چې مؤذن وایي هغه دي اورېدونکی هم ووایي هو کله چې مؤذن حَيِّ عَلَی الصَّلٰوةِ او حَيِّ علی الْفَلَاحِ ووایي نو د دغو کلماتو په جواب کې لاحول ولاقوة الا بالله العلی العظیم ویل په کار دي، او کله چې د سهار په اذان کې مؤذن الصَّلُوةُ خَيرٌ مِّنَ النَّومِ ووایي نو په جواب کې یې صَدَقْتَ وبَرَرْتَ ویل کیږي.

دحضرت عبدالله بن عمررضي الله عنهما څخه روایت

دی چي حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي: کله چي تاسي اذان واوری نو د مؤذن په شان تاسي هم هغه الفاظ وواياست بيا پر ماباندي درود وواياست ولي چي کوم څوک يو ځل پر ماباندي درود ووايي الله جل جلاله ورباندي لس ځله رحمت نازلوي، بيا د الله جل جلاله څخه زما لپاره "د وسيله د مقام" دعا وغواړئ ولي چي هغه د جنت يوه داسي درجه ده چي د الله د بندګانو څخه هم ويوه ته ورکول کيږي او زه اميد لرم چي هغه بنده زه يم څرنګه چي کوم سړی زما لپاره د وسيله دعا کوي د هغه لپاره زما شفاعت واجب دی. (مسلم)

ددغه فضيلت په رڼا کي حضرت محمد ﷺ د اذان وروسته کومه دعا چي ښوولي ده، په هغه کي دده لپاره د وسيله دعا شته، هغه دعا داده:

اَللهُمَّ رَبَّ هٰذهِ الدَّعْوَةِ التَّامَّةِ والصَّلاَةِ الْقَائمَةِ اٰتِ مُحَمَّدَنِ الْوَسِيْلَةَ وَالْفَضِيْلَةَ وَابْعَثْهُ مَقَامًا مَّحْمُوْدَانِ الَّذِیْ وَعَدْتَّهُ اِنَّکَ لاَتُخْلِفُ الْمِیْعَادَ.

حضرت جابر رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت محمد ﷺ د اذان وروسته ددې دعا لوستونکي ته دا زيرى ورکړى دى چي د قيامت په ورځ دده لپاره د حضرت محمد ﷺ شفاعت واجب دى. (بخاري)

ددې نه پرته د اذان وروسته دغه الفاظ ويل هم له حديث نه ثابت دى:

اَشْهَدُ اَنْ لَا اِلٰهَ اِلَّا اللّٰهُ وَحْدَهٗ لَاشَرِيْکَ لَهٗ وَاَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهٗ وَرَسُوْلُهٗ رَضِيْتُ بِاللّٰهِ رَبًّا وَبِمُحَمَّدٍ رَّسُوْلاً وَبِالْاِسْلَامِ دِيْنًا.

او حضرت سعد بن ابى وقاص رضي الله عنه د حضرت محمد ﷺ دغه ارشاد راوړى دى چي کوم څوک اذان واوري بيا دغه الفاظ ولولي نو د هغه ګناهونه بخښل کيږي. (مسلم)

د اذان په جواب ورکولو او د اذان وروسته دغه دعاګاني کولو کي کوم وخت نه لګيږي نه کوم محنت غواړي فقط د فکر کولو او عادت ګرځولو خبره ده که

ددغو اذکارو عادت وګرځول شي نو پرته له کوم وخت او محنته وانسان ته ډېر ستر اجر او ثواب حاصلېدای شي، له دې امله د اذان په مهال ددې اذابو بشپړه خیال کول په کار دي هو! که کوم عذر وي نو بېله خبره ده.

دلته دا هم په یاد ولرئ که په یو ځای کي تر یوه څخه زیات مسجدونو اذانونه یو په بل پسې اورېدل کیږي نو د لومړي اذان جواب چي صفا اورېدل کیږي د هغه په جواب ورکولو سره دغه سنت ادا کیږي د وروسته کېدونکو اذانونو جواب که ادا نه شي نو کوم باک نه لري. (شامیه)

## (۴۳) د قرآن کریم تلاوت کول:-

قران کریم د ټول بشریت لپاره د الله جَلَّ جَلَالُهُ تر ټولو ستر انعام دی ددې اصلي حق خو دادی چي سړی ځان په پوه کړي او عمل په وکړي، خو الله جَلَّ جَلَالُهُ خپل بندګان په خپل رحمت سره د نازولو یوه ذریعه د قران کریم د

الفاظو تلاوت کرځولی دی یعني د قران کریم د الفاظو تلاوت کول هم د پر زیات د اجر او ثواب باعث دی ځیني خلک د خپلي ناپوهی له کبله دا فهموي چي په قران کریم باندي د فهمولو نه پرته د.لوستلو څه ګټه ده؟ هغوی د الله جل جلاله کتاب د انسانانو په کتاب قیاسوي چي بې فهمولو يې لوستل يو فضول کار دی حال دا چي قران کریم د الله جل جلاله کتاب دی ددې تعليمات خو د دنيا او اخرت د کاميابی ضامن دی خو ددې په يوه يوه لفظ کي نور دي او ددې خالص تلاوت کول هم د ثواب او د خير او برکت باعث دی.

د حضرت عبدالله بن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي:

مَنْ قَرَاَ حَرْفً مِنْ كِتَابِ اللهِ فَلَهُ حَسَنَةٌ وَالْحَسَنَةُ بِعَشْرِ اَمْثَالِهَا لَااَقُوْلُ آلٓمّٓ حَرْفٌ وَلٰكِنْ اَلِفٌ حَرْفٌ وَلَامٌ حَرْفٌ وَمِيْمٌ حَرْفٌ. (ترمذي)

**ترجمه**: کوم څوک چي د الله جل جلاله د کتاب یو حرف ولولي، هغه ته یوه نیکي ورکول کیږي او دغه یوه نیکي د لسو نیکیو برابره ده، زه دا نه وایم چي آلمّ یو حرف دی بلکي الف یو حرف دی، لام یو حرف دی، او میم بل حرف دی.

له دغه حدیث نه معلومه شوه که یو څوک فقط آلمَّ تلاوت کړي فقط په دغه تلاوت سره دده په اعمال نامه کي د دېرشو نیکیو زیاتوب راځي، او له دغه حدیث نه دا هم معلومه شوه چي دغه ثواب په هغه صورت کي هم ورکول کیږي چي په مطلب یې ونه پوهیږي ولي چي آلمّ یو داسي لفظ دی چي ددې په معنی څوک نه پوهیږي نه ددې د صحیح مفهوم د فهمولو امکان شته (ولي چي دغه لفظ د مقطعاتو د حروفو څخه دی کوم چي په متشابهاتو کي راځي، او ددې په معنی څوک نه پوهیږي).

حضرت محمد ﷺ ددې حروفو په مثال ورکولو سره

دا هم روښانه کړه چې د قران د تلاوت دغه ثواب د معنی په فهمولو باندي موقوفه نه دی بلکې د نه فهمېدو په صورت کې هم پر تلاوت کولو باندي ثواب شته.

مطلب دا چې فقط په آلمّ لوستلو باندي د ېرش نېکی ورکول کېږي نو د قران کريم په يوه رکوع يا يو سورت لوستلو سره څومره اجر او ثواب ورکول کېږي؟

له دې امله هر مسلمان ته په کار ده چې هره ورځ سهار په نورو کارونو د بوختېدو نه وړاندي د قران کريم څه نا څه تلاوت عادت وګرځوئ، که يې زيات تلاوت نه شئ کولای نو يو پاؤ په اندازه او که دومره هم نه شئ کولای نو لږ تر لږه يوه رکوع دي تلاوت کړي نو هره ورځ دده په اعمال نامه کې په سوونو د نېکيو زياتوب راځي.

دغه ډول وهر مسلمان ته په کار ده چې د قران کريم څه سورتونه ياد کړي چې کله وخت ومونډي نو د قران دخلاصولو نه پرته هغه تلاوت کړي او دغه ډول د

تګ په حالت کي هم په خپل اعمال نامه کي د ښو عملونو ډېرښت راولي، حضرت ابن عباس رضي الله عنه روایت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي: د کوم سړي په حافظه کي چي د قران څه برخه نه وي هغه د یو خرابه کور په شان دی. (ترمذي)

## (۴۴) د فاتحه او د اخلاص د سورتونو تلاوت کول:-

د قران کریم تلاوت چي د کومي برخي نه وي هغه ټوله سره ثواب دی خو د ځیني سورتونو خاص خاص فضائل حضرت محمد ﷺ بیان کړي دي، په لنډو سورتونو کي تر ټولو نه زیات فضائل د فاتحه (الحمدالله) او اخلاص (قل هوالله) د سورتونو بیان شوي دي او په ډېرو حدیثونو کي حضرت رسول اکرم ﷺ په فضیلت کي د اخلاص سورة د قران دریمه برخه ګڼلې ده.

حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمايي: چي يو ځل نبی ﷺ ومعززو اصحابانو ته وفرمایل: چي "سره راټول شئ" زه ستاسي په حضور کي د قران د دريمي برخي تلاوت کوم، څه اصحابان سره راټول شول، نو رسول اکرم ﷺ د کور نه باهر راووتی او قُلْ هُوَ اللّٰهُ اَحَدٌ يې تلاوت کړ بیا وکور ته ستون شو، يو ګړی وروسته بیا بهر ته راووتی او ويي فرمایل: یاد ولرئ دغه سورت (یعني قل هوالله) د قران د دريمي برخي برابر دی.

(مسلم، ترمذي)

او د حضرت ابوالدرداء رضي الله عنه څخه روایت دی چي يو ځل حضرت محمد ﷺ واصحابانو ته د خطاب کولو په وخت وفرمایل: آیا ستاسو څخه يو څوک په يوه شپه کي د قران د دريمي برخي تلاوت نه شي کولای؟

اصحابانو عرض وکړ چي يو سړی په يوه شپه کي د قران دريمي برخي تلاوت څرنګه کولای شي؟ نبی ﷺ

برابر دی. (مسلم)

له دې امله د بزرګانو عادت دی چې ومړو ته د ثواب د رسولو لپاره درې ځله د اخلاص سورت تلاوت کړي او ثواب يې ومړو ته ولیږي.

## (۴۵) په ښه طريقه سره اودس کول:-

اودس په اطمينان سره د سنتو مطابق د ادابو په مراعت کولو سره کول هم ډېر د فضيلت عمل دی چې په احاديثو کې ورباندې ډېر د اجر او ثواب وعدې شوي دي د حضرت عثمان بن عفان رضي الله عنه څخه روايت دی چې حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي:

مَنْ تَوَضَّأَ فَأَحْسَنَ الْوُضُوْءَ خَرَجَتْ خَطَايَاهُ مِنْ جَسَدِهٖ حَتّٰى تَخْرُجَ مِنْ تَحْتِ اَظْفَارِهٖ. (مسلم، نسائی)

**ترجمه**: کوم سړی چې اودس وکړي او په ښه طريقه يې وکړي نود بدن څخه يې ګناهونه وزي، تر

دې پوري چې د نوکانو څخه يې ووزي.

په يو بل حديث کې راغلي دي چې يو ځل حضرت محمد ﷺ ومعززو اصحابانو ته وفرمايل: ايا زه تاسي ته د روښوم چې په کومو خبرو سره الله ﷻ ګناهوي رژوي او درجې اوچتوي؟ معززو اصحابانو وويل: چې يا رسول الله خامخا يې راوښوه.

نبي ﷺ وفرمايل: د نفس د نه غوښتني سره سره اودس په ښه طريقه سره کول، او د مسجد ولوري ته د ډېر ګامونه اخيستل، او د يوه لمانځه وروسته د بل لمانځه انتظار کول، دغه عملونه د جهاد فضيلت لري. (مسلم، ترمذي)

يعني د يخ موسم له وجهي يا د يو بل سبب له کبله اودس کول سخت وي دغه وخت هم اودس په بشپړه طريقه سره کول دومره ثواب دی څومره چې په جهاد کي په يو سرحد کي د پيرې کولو ثواب دی، او اودس په بشپړه طريقه سره د کولو مطلب دادی چې د ټولو

سنتونو او ادابو سره اودس وشي له دې امله په اودس کولو کي ددغو ټولو ادابو فکر سره سره اودس په سمه طريقه ښه زدکړه شي عمل ورباندي په کار دی چي له دې څخه په اعمال نامه کي د صالحو عملونو زياتوب راځي.

## (۴٦) مسواک کول:-

حضرت محمد ﷺ د مسواک کولو ډېر فضيلتونه بيان کړي دي حضرت عائشه رضی الله عنها روايت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي:

اَلسِّوَاکُ مُطَهِّرَةٌ لِلْفَمِ مَرْضَاةٌ لِلرَّبِّ.

**ترجمه**: مسواک د خولې د پاکولو او د الله جل جلاله د خوشحاله کولو ذريعه ده. (نسائی)

او حضرت عائشه رضی الله تعالی عنها په بل روايت کي د حضرت رسول اکرم ﷺ نه بيان کړی دی چي فرمايي:

فَضْلُ الصَّلَاةِ بِالسِّوَاکِ عَلَى الصَّلَاةِ بِغَيْرِ سِوَاکٍ سَبْعُوْنَ ضِعْفًا.

(الترغيب مخ۱۳۱ټوک۱په حوال دحاکم او احمد)

**ترجمه**: د مسواک په استعمال سره لمونځ کول د مسواک د استعمال نه پرته پر لمانځه باندي د اويا چنده فضيلت لري.

د مسواک په فضيلت کي بې شمېره حديثونه راغلي دي او داد حضرت محمد ﷺ د ډېره خوښو سنتونو څخه دی چي پکښي د دنيا او اخرت دواړو بهتري ده، او عمل هم داسي دی چي پکښي کوم محنت، تکليف او خرچه نشته، له دې امله ددې په ذريعه سره انسان په ډېره اساني سره په خپلو صالحو عملونو کي ډېرښت کولی شي.

## (۴۷) د اوداسه وروسته ذکر کول:-

حضرت فاروق اعظم رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: چي کوم څوک په ښه ډول اودس

وكړي بيا دغه كلمې ولولي:

اَشْهَدُ اَنْ لاَ اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَهُ لاَشَرِيْکَ لَهُ وَاَشْهَدُ اَنَّ مُحَمَّدًا عَبْدُهُ وَرَسُوْلُهُ.

نو د هغه لپاره د جنت اته دروازې پرانستل كيږي چې هغه له دغو اتو نه په كومه دروازه ننوتل وغواړي كولاى شي. (بخاري)

د ابوداؤد په روايت كې دا هم راغلي دي چې دغه كلمې لوستلو په وخت د اسمان ولورې ته وګورئ او د ترمذي په روايت كې راغلي دي چې ددغو كلماتو سره

اَللّٰهُمَّ اجْعَلْنِىْ مِنَ التَّوَّابِيْنَ وَاجْعَلْنِىْ مِنَ الْمُتَطَهِّرِيْنَ.

زياتوب دي وشي.

## (۴۸) تَحِيَّةُ الْوُضُوءِ:-

اودس چې د كوم مقصد لپاره وشي چې د هغه نه وروسته ژر دوه ركعته لمونځ د تحية الوضوء په نيت سره كول ډير د فضيلت باعث دى، د حضرت عقبه بن عامر رضي الله عنه نه روايت دى چې حضرت محمد ﷺ فرمايلي

دي: چي کوم سړی اودس وکړي او په ښه طريقه يې وکړي او دوه رکعته لمونځ داسي وکړي چي مخ او زړه يې هم د الله ولوري ته متوجه وي نو د هغه لپاره جنت لازميږي. (مسلم، ابوداؤد، نسائی)

او حضرت ابوهريره رضی الله عنه روايت کوي چي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم وحضرت بلال رضی الله عنه ته فرمايلي: چي ماته خپل هغه عمل راوښوه چي وتاته تر ټولو زيات د هغه نه درته د ثواب اميد وي ولي چي ما (د معراج په وخت) په جنت کي پخپله "ستا د ګامو اواز اوريدلی دی" حضرت بلال رضی الله عنه عرض وکړ چي ماته د کوم عمل څخه زيات (د الله د رحمت) اميد شته هغه دادی چي ما په ورځ يا په شپه کي چي کوم وخت اودس کړی دی نو څومره توفيق چي راته شوی دی لمونځ مي خامخا کړی دی. (بخاري، مسلم)

## (۴۹) تَحِيَّةُ الْمَسْجِد:-

دغه رنګه دا هم مستحب عمل دی چي هر کله يو

سړی ومسجد ته ورشي نو د تحية المسجد په نيت سره دوه رکعته لمونځ ادا کړي د رسول اکرم ﷺ ارشاد دی چي کله ستاسو څخه څوک ومسجد ته راشي نو هغه ته ښايي چي دوه رکعته لمونځ وکړي. (ترمذي)

په دې کي هم قانون دادی چي دوه رکعته د تحية المسجد په نيت سره جلا وشي خو که د فرضو يا سنتو وخت وي او په دغه فرض يا سنتو کي د تحية المسجد نيت وشي نو د الله جل جلاله د رحمت نه اميد شته چي انشاء الله د دغه نيت له برکته به انسان د تحية المسجد د ثواب څخه نه محرومه کيږي د تحية المسجد اصل طريقه داده چي د مسجد د رسېدو سره سم تر ناستي مخکي دوه رکعتونه ادا شي خو که يو سړی د يو سبب له کبله کښېناستی بيا هم صحيح داده چي تحية المسجد ادا کولای شي.

او که وخت دومره تنګ وي چي د تحية المسجد د کولو وخت نه وي نو چي نور نه يې دغه کلمه دي

سُبْحَانَ اللهِ، وَالحمدُللهِ، وَلا الهَ الاَّ اللهُ واللهُ اَكْبَرُ، وَلاحَوْلَ وَلاقُوَّةَ الاَّ باللهِ الْعَلِيِ الْعَظِيْمِ.

بلکي دغه کلمې چي انسان څومره وخت په مسجد کي ناست وي همېشه دي ولولي، په حدیث کي ددې ډېر فضیلت راغلی دی او دغه یې د جنت د مېوې په خوړلو سره تعبیر کړی دی.

## (۵۰) د اعتکاف نیت کول:-

چي کله ومسجد ته ورځي، د لمانځه لپاره وي او که د بل کوم کار لپاره وي که دغه نیت وکړي چي څومره وخت په مسجد کي اوسېږم په اعتکاف کي به یم نو انشاء الله د دغه نیت له برکته به د نفلي اعتکاف ثواب ګټلای شي.

## (۵۱) په لومړي صف کي لمونځ کول:-

د ...

سُبْحَانَ اللهِ، وَالحمدُلله، وَلا اله الاَّ الله واللهُ اَكْبَرُ، وَلاحَوْلَ وَلاقُوَّةَ الاَّ بالله الْعَلِي الْعظِيْمِ.

بلكي دغه كلمې چي انسان څومره وخت په مسجد كي ناست وي همېشه دي ولولي، په حديث كي ددي ډېر فضيلت راغلی دی او دغه يې د جنت د مېوې په خوړلو سره تعبير كړی دی.

## (۵۰) د اعتكاف نيت كول:-

چي كله ومسجد ته ورځي، د لمانځه لپاره وي او كه د بل كوم كار لپاره وي كه دغه نيت وكړي چي څومره وخت په مسجد كي اوسېږم په اعتكاف كي به يم نو انشاء الله ددغه نيت له بركته به د نفلي اعتكاف ثواب ګټلای شي.

## (۵۱) په لومړي صف كي لمونځ كول:-

د يوازي لمونځ كولو په مقابله كي په جماعت سره

د فرض لمونځ کول د اوويشت درجې زيات فضيلت لري خو د جماعت په لمانځه کي هم په لومړي صف کي د لمونځ کولو ثواب تر ټولو ډېر دی، دومره ډېر چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي:

لَوْتَعْلَمُوْنَ مَافِى الصَّفِّ الْمُقَدَّم لَكَانَتْ قُرْعَةً.

**ترجمه**: که وتاسي ته معلومه شي چي په لومړي صف کي څومره فضيلت شته نو به هسکه ورباندي وکړئ. (مسلم)

حضرت ابوامامه رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي چي الله جل جلاله او د هغه ملکي په لومړي صف باندي رحمت ليږي. (مسند احمد)

او حضرت عرباض بن ساريه رضي الله عنه فرمايي: چي حضرت محمد ﷺ د لومړي صف لپاره درې ځله استغفار کوی، او د دوهم صف لپاره يو ځل.

(نسائی، ابن ماجه)

له دې امله هسي خو هر لمونځ په لومړي صف کي د

کولو کوښښ په کار دی خو که په هر لمانځه کي ددي پابندي ونه شي نو کله چي موقع په لاس ورشي د لومړي صف د فضیلت لاس ته راوړلو فکر په ښه ځیر سره په کار دی خو په لومړي صف کي دغه ډول په زوره ننوتل جایز نه دی چي له دې څخه ونورو ته تکلیف ورسیږي.

څرنګه چي د ابن عباس رضی الله عنه څخه روایت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي:

مَنْ تَرَکَ الصَّفَّ الاَوَّلَ مَخَافَةَ اَنْ يُؤْذِیْ اَحَدًا اَضْعَفَ اللّٰهُ لَهُ اَجْرا الصَّفِّ الاَوَّلِ.

**ترجمه**: کوم سړی چي له دغه ویري نه لومړی صف پرېږدي چي وبل چا ته تکلیف رسیږي نو الله جل جلاله به ورته د لومړي صف د ثواب نه دوه چنده ثوابونه ورکوي.

(الترغیب مخ ۲۸۵، په حواله د طبراني وفی اسناده ضعف)

# (۵۲) په صف کي خالي ځای

## د کول:-

د جماعت په وخت کي صفونه سمول او د صفونو په منځ کي خالي ځای ډکولو هم ډېر تاکید راغلی دی او ددې ډېر فضیلت هم بیان شوی دی.

د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي:

مَنْ وَصَلَ صَفًّا وَصَلَهُ اللهُ.

**ترجمه**: يعني کوم سړی چي د صف خلا ډکه کړي الله جل جلاله به يې په خپل قرب او نژديکت سره ونازوي.

(نسائی)

او حضرت ابو حجيفة رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: کوم سړی چي د صف خالي ځای ډک کړي، الله جل جلاله به دده مغفرت کوي، او په عامو حالاتو کي د امام وراسته لوري ته په دريدلو کي

ډېر ثواب دی خو که ډېر خلک وراسته طرف ته ودرېدل او د چپ لوري ځای خالي وي نو په دغه صورت کي وچپه لوري ته د رېدلو دوه چنده فضیلت په احادیثو کي بیان شوی دی.

(وګورئ، الترغيب للمنذري مخ ۲۸۷ په حواله د ابن حزيمه)

## (۵۳) د اشراق لمونځ کول:-

د اشراق لمونځ یو نفلي لمونځ دی چي د لمر ختو وروسته هغه وخت کیږي چي لمر لږ راوخیږي او د لمر ختو څخه دوولس دقیقې وروسته ادا کیږي، دا فقط دوه رکعته دی خو په احادیثو کي ددې ډېر فضائل راغلي دي.

د حضرت ابو هریره ﷺ څخه روایت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي: چي کوم سړی د اشراق د دوو رکعتونو پابندي وکړي د هغه (صغیره) ګناهوي معافیږي که څه هم د دریاب د ځګ په شان وي.

(ترمذي، ابن ماجه)

حضرت ابوهریره رضي الله عنه فرمایي: چي حضرت محمد ﷺ یو ځل څه اصحابان د جهاد لپاره ولیږل، هغوی ډېر ژر بیرته راغلل او ډېر د غنیمت مال یې د ځان سره راوړ یوه صاحب ډېر تعجب وکړ د نبی ﷺ نه یې پوښتنه وکړه چي یا رسول الله! موږ ورانده داسي لښکر نه ولیدی چي داسي ژر دي راغلی وي او دومره ډېر د غنیمت مال یې راوړی وي څومره چي دغه لښکر راوړی دی نبی ﷺ وفرمایل: ایا زه د هغه سړي په باب درته ونه وایم چي تر دې هم ژر راستون شي او تر دې هم زیات د غنیمت مال راوړي بیا یې وفرمایل: چي کوم سړی ښه ډول اودس وکړي، ومسجد ته ستون شي او د سهار لمونځ ادا کړي بیا ددې وروسته (یعني د لمر ختو وروسته) د اشراق لمونځ ادا کړي دغه سړی ژر راغلی او ډېر د غنیمت مال یې د ځان سره راوړی.

(ترغیب، مخ ۴۲۷ لومړی ټوک په حواله د ابویعلی باسناد صحیح)

د حضرت ابوذرغفاري رضي الله عنه هغه حدیث مخکي بیان شوی دی چي مفهوم یې دادی: چي د انسان په بدن کي

انسان هلته کښېني ذکر وکړي او د لمر ختو وروسته د اشراق لمونځ ادا کړي، په حدیث کي ددې ثواب د حج او عمرې برابر ګڼل شوی دی خو که یو څوک د یو سبب له امله داسي ونه کړای شي نو کور ته راستون شي یو بل کار وکړي بیا هم د اشراق دوه رکعتونه ادا کولای شي.

## (۵۴) د جمعې د ورځې غسل کول او عطر لګول:-

د جمعې په ورځ د غسل کولو هم په حدیث کي ډېر فضیلت راغلی دی، د غسل کولو په وخت دغه نیت کول په کار دی چي دغه غسل د جمعې له وجهي کیږي دغه رنګه د غسل کولو وروسته خوشبویي لګول هم سنت دي او د سنت د متابعت په نیت کولو سره پر دې باندي ثواب هم شته.

حضرت ابوایوب انصاري ﵁ روایت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي:

مَنِ اغْتَسَلَ يَوْمَ الْجُمُعَةِ وَمَسَّ مِنْ طِيْبٍ اِنْ كَانَ عِنْدَهُ وَلَبِسَ اَحْسَنَ ثِيَابِه، ثُمَّ خَرَجَ حَتّٰى يَأْتِيَ الْمَسْجِدَ فَيَرْكَعَ مَابَدَالَهُ وَلَمْ يُؤْذِ أَحَدًا، ثُمَّ أَنْصَتَ حَتّٰى يُصَلِّيَ كَانَ كَفَّارَةً لِمَا بَيْنَهَا وَبَيْنَ الْجُمُعَةِ الْاُخْرٰى. (ترغيب په حواله د مسند احمد)

**ترجمه**: کوم سړی د جمعې په ورځ غسل وکړي او که ورسره عطر (خوشبويي) وي نو هغه ولګوي، او ښه جامې واغوندي، بيا د کوره ووزي ومسجد ته ستونشي هلته چي څومره غواړي لمونځ وکړي او چا ته تکليف ونه رسوي، بيا پټه خوله شي تر دې پوري چي لمونځ بشپړ کړي نو دده دغه عمل ددغي جمعي نه تر راتلونکي جمعې پوري د (صغيره ګناهونو) کفاره ګرځي.

او حضرت ابو امامه رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت رسول اکرم صلی الله علیه وسلم فرمايلي دي: چي دجمعې دورځي غسل

د وېښتانو د بېخو نه (صغيره) ګناهوي راباسي.

دغه رنګه د جمعې په ورځ د غسل کولو او عطر لګولو وروسته څومره چي ممکنه وي ومسجد ته تلل په کار دي، په يو حديث کي راغلي دي چي د جمعې په ورځ ملکي د مسجد په دروازو باندي ولاړي وي او د مخکني راتلونکو خلګو نومان ليکي کوم خلګ چي تر ټولو وړاندي ومسجد ته ستانه شي هغه ته دومره ثواب ورکول کيږي څومره چي د يوه اوښ د قربانۍ، بيا چي کوم خلګ په دوهم نمبر باندي وي هغوی ته د غوايي د قربانۍ او کوم چي په دريم نمبر باندي وي هغوی ته د پوسه د قربانۍ او چي څلورم نمبر باندي راشي هغوی ته د چرګ برابر خيرات کولو او کوم چي په پای کي راشي هغوی ته د هګۍ د خيراتولو ثواب ورکول کيږي خو کله چي امام د خطبې لپاره راووزي نو ملکي خپلي صحيفې (ورقي) کتوي. (بخاري، مسلم)

## (۵۵) پیشلمی کول:-

د رمضان د میاشیت فرضي روژې وي او که نفلي وي دواړه ستر عبادتونه دي او په دې کي پېشلمی کول بیل د ثواب عمل دی.

حضرت انس ﷛ فرمایي: چي حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي: "چي پېشلمی کوئ ولي چي په پېشلمي کي برکت دی". (بخاري)

او د حضرت عبدالله بن عمر رضی الله عنهما څخه روایت دی چي حضرت رسول اکرم ﷺ فرمایلي دي:

اِنَّ اللّٰهَ وَمَلَائِكَتَهُ يُصَلُّوْنَ عَلَى الْمُتَسَحِّرِيْنَ.

**ترجمه**: تحقیق سره الله جل جلاله او د هغه ملکي پر پېشلمي کوونکو باندي رحمت لیږي.

(ترغیب په حواله د ابن حبان او طبراني)

د ابو سعید خدري ﷛ څخه روایت دی چي د حضرت محمد ﷺ ارشاد دی:

اَلسَّحُوْرُ كُلُّه بركَةٌ، فَلاَ تَدْعُوْه، وَلَوْ ان يجرع اَحَدُكُمْ جرعَةً من ماءٍ، فَانَّ الله عَزَّ وَجَلَّ وملائكته يُصَلُّوْنَ عَلَى الْمُتَسَحِّرِين.

(ايضًا په حواله د مسند احمد واسناده قوى)

**ترجمه**: پيشلمی تولـه سره برکت دی نو دا مه پرېږدئ که څه هم.ستاسو څخه يو څوک يو غړپ اوبه وڅښي ولي چي الله ﷻ او د هغه ملکي پر پيشلمي کوونکو باندي رحمت ليږي، او په پيشلمي کي ښه داده چي د شپې په اخره کي وي.

## (٥٦) روژه مات ژر کول:-

په روژه کي چي د لمر ولېدو ښه يقين وشي نو دي په روژه ماتولو کي تلوار کوي، پرته له کومه عذره ځنډنه دی په کار.

د حضرت سهل بن سعد رضي الله عنه روايت دی چي د حضرت رسول اکرم ﷺ ارشاد دی: چي په خلکو کي به

تر هغو پوري خیر وي تر څو چي هغوی په روژه مات کي تلوار کوي. (بخاري، مسلم)

او د حضرت ابوهریره رضی الله عنه څخه روایت دی چي نبی صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي: چي الله جل جلاله ته خپل هغه بندګان محبوب دي کوم چي ژر روژه مات کوي.

(مسند احمد، ترمذي)

## (۵۷) روژاتي ته روژه مات ورکول:-

ویو روژاتي ته روژه مات ورکول هم ډېر د ثواب عمل دی حضرت زید بن خالد جهنی رضی الله عنه روایت کوي چي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

مَنْ فَطَّرَ صائِمًا كَانَ لَهُ مِثْلُ أَجْرِهِ غَيْرَ أَنَّهُ لَايُنْقَصُ مِنْ أَجْرِ الصائِمِ شَيْءٌ. (نسائی، ترمذي)

**ترجمه**: کوم سړی چي ویو روژاتي ته روژه مات ورکړي نو وهغه ته د روژاتي غوندي اجر ورکول کيږي او د روژاتي په ثواب کي څه کمي نه راځي.

او د حضرت سلمان فارسي رضي الله عنه څخه روايت دی چي حضرت رسول اکرم ﷺ فرمايلي دي: چي کوم سړی په رمضان کي ويو روژاتي ته روژه مات لپاره څه خورک ورکړي نو دغه عمل به وده ته د دوږخ د خلاصون او دده د ګناهونو د بخښښ ذريعه وي او وده ته به د روژاتي د ثواب په شان ثواب ورکول کيږي او د روژه نيونکي د اجره نه به لږ شي هم نه راځي، اصحابانو عرض وکړ چي زموږ څخه د هر يوه سره دومره شی ته وي چي وروژاتي ته روژه مات ورکړي، نو حضرت محمد ﷺ په جواب کي ورته وفرمايل: چي الله جل جلاله دغه ثواب وهغه سړي ته هم ورکوي چي ويو روژاتي سړي ته يوه خرما يا د اوبو يا د شيدو په يو غړپ سره روژه ورماته کړي. (صحيح ابن خزيمه)

## (۵۸) د حاجي يا مجاهد د کور حال معلومول:-

حج او جهاد دوه ستر عبادتونه دي ، خو کوم خلک

چي د وس او طاقت نه لرلو له کبله دغه عظيم عبادتونه نشي کولای د دوی لپاره هم الله جَلَّ جَلَالُهُ ددغو عبادتونو په ثواب کي د برخي اخيستلو ډېره ښه لاره موندلې ده او هغه داده چي کوم سړی د يو مجاهد سره د جهاد په تياري کي کومک وکړي يا د يو حاجي د حج په تياري کي کومک وکړي، الله جَلَّ جَلَالُهُ دي هم د جهاد او د حج په ثواب کي برخمن کوي دغه رنګه که يو سړی جهاد يا وحج ته تللی وي نو د هغه تر شا دده د کور والاؤ حالت معلومول، د هغوی اړتيا پوره کول دا هم يو داسي عمل دی چي ورځخه انسان د جهاد يا د حج په ثواب کي برخمن کېدای شي.

حضرت زيد بن خالد رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت محمد صلى الله عليه وسلم فرمايلي دي:

مَنْ جَهَّزَ غَازِيًا، أَوْجَهَّزَ حَاجًّا، اَوْخَلَفَهُ فِى اَهْلِهِ اَوْفَطَّرَ صَائِمًا، كَانَ لَهُ مِثْلُ اُجُوْرِهِمْ مِنْ غَيْرِ اَنْ يُنْقَصَ مِنْ اُجُوْرِهِمْ شَيْئًا (نسائى)

**ترجمه**: کوم څوک چي یو مجاهد (د جهاد لپاره) چمتو کړي، یا یو حاجي (د حج لپاره) تیار کړي (یعني د اسبابو په برابرولو کي کومک ورسره وکړي) یا د هغه تر شا د کور نګراني یې وکړي یا ویو روژاتي ته روژه مات ورکړي نو دغه سړی ته ددغو ټولو د ثواب په شان ثواب ورکول کیږي پرته له دې نه چي د هغوی د ثواب نه څه کمي وشي.

## (۵۹) د شهادت دعا کول:-

د الله په لاره کي شهید کېدل د انسان یوه لویه نېکبختي ده، او څرنګه چي د شهادت بې شمېره اجرونه او ثوابونه دي دغه ډول ددې غوښتنه او دعا کولو باندي هم الله جل جلاله هغه ثواب ټاکلی کوم چي یې په شهادت باندي ورکوي.

لکه حضرت سهل بن حنیف رضي الله عنه چي روایت کوي چي حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي:

مَنْ سَأَلَ اللهَ الشَّهَادَةَ بِصِدْقٍ بَلَّغَهُ اللهُ مَنَازِلَ

الشُّهَدَاءِ وَاِنْ مَاتَ عَلٰى فِرَاشِهٖ. (مسلم)

**ترجمه**: کوم څوک چي د الله ﷻ څخه د شهادت دعا په رښتيا سره وکړي الله ﷻ به يې د شهيدانو ومقام ته ورسوي که څه هم په خپل بستر باندي مړ شي.

او حضرت انس رضي الله عنه روايت کوي چي حضرت محمدِ ﷺ فرمايلي دي:

مَنْ طَلَبَ الشَّهَادَةَ صَادِقًا اُعْطِيَهَا وَلَوْ لَمْ تُصِبْهُ.

**ترجمه**: کوم سړی چي د زړه د اخلاصه د شهادت غوښتونکی وي هغه ته شهادت ورکول کيږي که څه هم په ښکاره نه وي ورکول شوی (يعني هغه په خپل بستر مړ شوی وي). (مسلم)

## (٦٠) سهار وختي په کار پيل کول:-

خپل کارونه د سهار د وخته پيل کولو هم په حديث کي فضيلت راغلی دی، حضرت محمد ﷺ د الله ﷻ

ښخه دعا غوښتي ده: اَللهُمَّ بَارِکْ لاُمَّتِیْ فِی بُکُوْرِهَا.

**ترجمه** : ای الله! زما د امت لپاره د هغوی د سهار په کارونو کي برکت واچوې. (ترمذي)

ددې په خلاف حضرت محمد ﷺ د سهار وروسته د لمر ختو نه وړاندي د خوب ښخه منع کړې ده او دغه يې د بې برکتی سبب ګڼلی دی. (ابن ماجه)

يو ځل حضرت رسول الله ﷺ حضرت فاطمه رضی الله عنها يې د سهار د لمانځه وروسته ويده وليدل نو يې راويښه کړه او د خوب نه يې منع کړل.

(ترغيب مخ ۱۹۱ دريم ټوک په حواله د بيهقي)

## (٦١) په بازار کي د الله ذکر کول:-

کله چي انسان د خپل کارو بار لپاره وبازار ته ولاړ شي نو هغه وخت په لړ. لړ. وقفې سره د الله جل جلاله ذکر کول ډېر د اجر او ثواب عمل دی، په حديث کي راغلي دي

چي په کوم ځای کي خلک د الله جل جلاله د یاده غافل وي هلته الله جل جلاله یادول داسي دي لکه د جهاد له میدانه چي خلک تېښته وکړي خو بیا هم دغه مهال ځیني کسان ثابت قدمه پاته شي او جهاد وکړي

(ترغیب مخ ۱۹۳دریم ټوک په حواله د بزاز او طبراني)

حضرت ابو قلابه رحمة الله علیه د مشهورو تابعینو څخه دی هغه فرمایي: چي یو ځل په بازار کي دوو نفرو سره ولیدل د هغو څخه یوه وهغه بل ته وویل: چي راشه په داسي وخت کي چي کله خلک په غفلت کي وي موږ به د الله جل جلاله څخه د ګناهونو بخښنه وغواړو، دا چي یې واورېدل دغه بل هم استغفار وکړ، ددې وروسته یو وفات شو او دغه بل انډیوال په خوب ولیدی چي هغه وایي: کوم ماښام چي موږ دواړه په بازار کي سره یو ځای شوي ؤ، دغه ماښام الله جل جلاله زموږ دواړو بخښنه وکړه. (ترغیب مخ۱۹۲دریم ټوک په حواله د ابن ابی الدینا)

هسي خو په بازار کي چي د کوم ذکر توفیق وشي

ټولـه سره خير او برکت دی خو پـه خاص ډول د ځينو اذکارو فضيلت په حديث کي راغلی دی:

حضرت عمر رضي الله عنه د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم نه دغه الفاظ راوړی دي:

لا اِلٰهَ اِلاَّ اللّٰهُ وَحْدَهٗ لاَشَرِيْکَ لَهٗ لَـهُ الْمُلْـکُ وَلَـهُ الْحَمْدُ يُحْيِ وَيُمِيْتُ وَهُوَ حَيٌّ لاَيَمُوْتُ بِيَـدِهِ الْخَيْـرُ وَهُوَ عَلٰی کُلِّ شَیْءٍ قَدِيْرٌ.

حضـرت محمـد صلی الله علیه وسلم فرمـايلي دي: چـي کـوم څـوک وبازار ته ننوزي دغه کلمې ولولي نو الله جل جلاله دده لپـاره په زرګونو نېکۍ ليکي، په زرګونـو (صغيره) ګناهوي معافوي او په زرګونو درجې يې اوچتوي. (ترمذي)

دغه بايد په خاص ډول په ياد شي او په بازار کي د اوسېدلو په مهال په وار وار ويل په کار دی.

## (٦٢) پلورل شوی شی بيرته اخيستل:-

ځيني وختونه يو سړی ديو چا څخه يو شی رانيسي

خو وروسته یې د یو سبب له امله خوښ نه شي، غواړي چې ودکاندار ته یې بیرته ورکړي، په داسي صورت کي د خرخوونکي په ذمه خو دا ضروري نه ده چې خامخا خرڅ کړل شوی شی بیرته واخلي، خو که هغه د خریدار په پښېماني یا د هغه وضرورت ته وګوري اخیستل یې قبول کړي نو په حدیث کي ددې هم فضیلت راغلی دی

حضرت ابوهریره ﷺ روایت کوي چي حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي:

مَنْ اَقَالَ مُسْلِمًا بَيْعَتَهُ اَقَالَهُ اللهُ عَثْرَتَهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ.

**ترجمه**: کوم څوک چي د یو مسلمان سره کړه شوې بیع واخلي، الله ﷻ د قیامت په ورځ دده خطاوي معافوي. (ابوداؤد)

## (٦٣) ویو سړي ته پور ورکول:-

ویوا سړي ته پور ورکول هم ډېر ثواب لري، د حضرت عبدالله ابن مسعود ﷺ څخه روایت دی چي

حضرت رسول اکرم ﷺ فرمایلي دي: چي هر پور صدقه ده. (بیهقي، طبراني)

بلکي د ځینو احادیثو نه بریښي چي ویو اړ سړي ته پور ورکول تر صدقې هم زیات ثواب لري.

(ترغیب، په حواله د طبراني او بیهقي)

غالبًا ددې وجه داده چي په پور کي عمومًا دومره پیسې ورکول کیږي چي د خیراتولو نیت یې نه وي او هغه وداسي سړي ته ورکول کیږي چي محتاجه وي خو د خلکو څخه یې نه غواړي سوال نه کوي نو له دې کبله دده ضرورت په پوره کولو کي اجر او ثواب هم زیات دی.

## (٦٤) ونادارہ "لاس تړلي" پوره وړي ته مهلت ورکول:-

ولاس تړلي پوره وړي ته د پور د ادا کولو لپاره مهلت ورکول په قران او حدیث کي ډېر فضیلت راغلی دی د قران کریم ارشاد دی:

وَاِنْ كَانَ ذُوْعُسْرَةٍ فَنَظِرَةٌ اِلٰى مَيْسَرَةٍ. (البقره)

**ترجمه**: او كه ؤ پوره وړي (قرض وړونكى) خاوند د ناداري نو پر تاسي ذى انتظار پوره وړى (قرض وړنكي) ته تر وختهٔ د پراخي د پوره وړي.

او حضرت ابوهريره رضي الله عنه روايت كوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي:

مَنْ اَنْظَرَ مُعْسِرًا اَوْوَضَعَ لَهُ اَظَلَّهُ اللّٰهُ يَوْمَ الْقِيَامَةِ تَحْتَ ظِلِّ عَرْشِهِ يَوْمَ لَاظِلَّ اِلَّاظِلُّهُ.

**ترجمه**: كوم څوك چي د يو تنګ لاسه او ناداره ته مهلت وركړي يا د هغه په پور كي كمي راولي، الله جل جلاله به دى داسي ورځ د خپل عرش په سايه كي ولري چي دغه ورځ دده د سايې نه پرته بله كومه سايه نه وي. (ترمذي، وقال حسن صحيح)

او حضرت حزيفه رضي الله عنه روايت كوي چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: چي په مخكني امتونو كي د يو

**ترجمه**: کوم مسلمان چي يو بوټی لګوي يا کښت کري او له دې نه کوم مرغه يا انسان خورک کوي نو دا دده لپاره صدقه ګرځي. (بخاري، مسلم)

يعني کوم انسان يا څاروي له دغه درختي يا کښته ګټه اخلي ددې ثواب ولګوونکي ته همېشه ورکول کيږي او دا به دده لپاره جاريه صدقه وي.

## (٦٧) د څارويو سره ښه چلن کول:-

اسلام د انسان په ډول د څارويو هم حقوق ټاکلي دي، کوم څاروي چي ضرري نه وي هغوی ته پرته له کومه سببه تکليف رسول منع دي.

تر دې چي کوم څاروی حلاليږي هغه په داسي ډول سره حلالولو تاکيد شوی دی چي ورته لږ تر لږه تکليف ورسيږي حضرت محمد ﷺ امر کړی دی چي تر حلالولو مخکي چاړه تيږه کړي او حلاليدولو والا څاروي ته چي څومره راحت ور ورسي په کار ده چي ور ورسيږي. (ترمذي)

نو پر خارویو رحم کول، د هغوی پالنه کول او آرام ور رسول الله ﷻ ته ډیر محبوب عمل دی او ددې ډیر اجر او ثواب دی.

نبی ﷺ د مخکني امتونو د یو سړي واقعه بیان کړې چي دی د سفر په مهال سخت تږی شو، لتمه یې وکړه یو ځاه یې ولید چي سلواغه یې نه درلوده وڅاه ته ور تاسو او اوبه یې وڅیښلې خپل تنده یې ماته کړه، کله چي هغه اوبه وڅیښلې روان شو نو یې یو سپی ولیدی چي د تندي د سختۍ له کبله یې خاوري څټلې، نو یې پر سپي زړه وسوزی چي دی هم داسې تږی دی لکه زه چي تږی وم نو یې د پوښې څخه خپل موزه وکښل او څا ته یې ورښوه کړه د اوبو یې ډکه کړه او د څاه څخه راپورته شو، او سپي ته یې اوبه ورکړې الله ﷻ ته دغه عمل دومره خوښ شو چي په دې سره یې دده بخښښ وکړی. (بخاري، مسلم)

عبدالله بن مسعود ﷛ څخه روایت دی چي ما د رسول الله ﷺ څخه پوښتنه کړې چي تر ټولو افضل عمل کوم یو دی؟ نبی ﷺ وفرمایل: په خپل وخت باندي لمونځ کول، ما ورته وویل: یا رسول الله! له دې وروسته کوم عمل دی؟ نبی ﷺ وفرمایل:

اَنْ یَسْلَمَ النَّاسُ مِنْ لِسَانِکَ.

"دغه خبره چي خلګ ستا د ژبي څخه په امن وي".

(ترغیب، مخ۳۰۲په حواله د طبراني باسناد صحیح)

یعني ژبه د نورو په زړه زهیرولو څخه، د غیبت څخه، د چم او دوکې څخه وژغوره.

حضرت عقبه بن عامر ﷛ د حضرت رسول اکرم ﷺ څخه وپوښتل چي د خلاصون لاره کومه ده؟ نبی ﷺ وفرمایل: اَمْسِکْ عَلَیْکَ لِسَانَکَ وَلْیَسَعَکَ بَیْتُکَ وَابْکِ عَلٰی خَطِیْئَتِکَ.

**ترجمه**: خپله ژبه په خپل اختیار کي ولره او ستا

کور ستا لپاره کفایت کوي او په خپل ګناه باندي وژاړه. (ابوداؤد، ترمذي)

د کور د کافي کېدلو نه مطلب دادی چي پرته له اړتیا د کور څخه وبهر ته وتلو له کبله په فتنه کي بوخت نه شي او پر ګناه باندي د ژړا کولو څخه مطلب پر ګناه باندي پښېماني او توبه کول دي.

او په یو حدیث کي راغلي دي چي حضرت رسول اکرم ﷺ وحضرت ابوذر غفاري رضي الله عنه ته وفرمایل: چي ایا زه وتاته دوه داسي عملونه درونه ښوم چي د هغه بار پر انسان باندي ډېر سپک خو د ترازو په عمل ډېر درانه وي؟ حضرت ابوذر رضي الله عنه پوښتنه وکړه چي یا رسول الله! خامخا یې راوښیه نبی ﷺ وفرمایل:

عَلَيْكَ بِحُسْنِ الْخُلُقِ وَطُوْلِ الصَّمْتِ.

د ښو اخلاقو او ډېر پټه خوله کېدلو پابندي وکړه.

(ترغیب، مخ ۳۱۲ څلورم ټوک په حواله

د طبراني وابویعلی ورجاله ثقات)

حَدَّثْتَمْ وَاحْفَظُوْا فُرُوْجَكُمْ وَغُضُّوا اَبْصَارَكُمْ وَكُفُّوا اَيْدِيَكُمْ.

**ترجمه**: ما ته د شپږو خبرو ضمانت راکړی زه وتاسي ته د جنت ضمانت درکوم، کله چي امانت ستاسي سره کېښېښول شي نو هغه ادا کړي کله چي د يو چا سره وعده وکړی نو هغه پوره کړئ، چي خبره کوئ نو رښتيا ووایاست او د خپلو فرجو (د ناروا کارونو څخه) ساتنه وکړي او خپلي سترګي کښته ولري، او خپل لاسونه (د خلګو د تکليف او ګناهونو څخه) ونيسي.

(شعب الايمان البيهقي مخ ۳۲۰ څلورم ټوک، حديث ۵۲۵۶)

## (۷۸) د ښې لورې نه د يو کار پيل کول:-

د ښو کارونو پيل کول د راسته لوري څخه هم د الله جَلَّ جَلَالُهُ او حضرت رسول الله ﷺ يو خوښ عمل دی چي

وربانديي د ثواب امید شته، حضرت عائشه رضی الله عنها فرمایي: چي حضرت رسول الله ﷺ خپل واړه کارونه د ښي لوري نه پيل کول خوښول په اوداسه کي هم، په زمونږ کولو کي هم او بوټونو په پښو کولو کي هم.

(بخاري)

د حضـرت ابـوهريره رضي الله عنه روايـت دی چـي حضـرت محمد ﷺ فرمايلي دي:

اِذَا لَبِسْتُمْ وَاِذَا تَوَضَّأْتُمْ فَابْدَءُوْا بِاَيَامِنِكُمْ.

**ترجمه**: کله چي جامې واغوندي او اودس کوي نو د راسته لوري څخه يې پيل کړي. (ابوداؤد، ترمذي)

د حضرت ابوهريره رضي الله عنه يو بل روايت دی چي رسول الله ﷺ:

اِذَا انْتَعَلَ اَحَدُكُمْ فَلْيَبْدَأْ بِالْيَمِيْنِ، وَاِذَا نَزَعَ فَلْيَبْدَأْ بِالشِّمَالِ. (بخاري، مسلم)

**ترجمه**: کله چي ستاسي څخه يو څوک بوټونه په

هغه دي څيني ليري کړي وه يې خوري او دا د شيطان لپاره مه پرېږدئ بيا چي فارغه شئ خپلي ګوتي وڅټئ ولي چي دا نه ده معلومه چي د ډوډۍ په کومه برخه کي برکت دی. (مسلم)

ددغه حديث له نظره د الله ﷻ د رزق ناقدري کول يو شيطاني عمل دی، او د لوښدلي ډوډۍ په خوړلو سره د رزق قدر کول دي څرنګه چي پر دغو عملونو باندي ثواب شته نو له دې امله ددغو اعمالو اهتمام کول په کار دی. او په دې اړه بې ځايه شرمېدلو نه ډډه او پرهېز کول په کار دي، هو که ګوله داسي ولوېږي چي صفا کول يې ناممکنه وي نو بېله خبره ده.

## (۸۰) په ترشي کولو باندي حمد ويل او جواب ورکول:-

د حضرت ابوهريره ﷺ څخه روايت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمايلي دي: چي الله ﷻ ترشي خوښوي او اړږمۍ نه خوښه وي کله چي ستاسي څخه ويوه ته

ترشي راشي نو دي الحمدلله ووايي او کوم سړی چي يې واوري پرده باندي بيا د لومړي سړي حق دی چي يَرْحَمکَ الله ووايي. (بخاري)

دا د اسلامي تهذيب او ثقافت هغه اداب دي چي د هر مسلمان به عادت ګرځېدلی ؤ، متأسفانه چي اوس خلګ ددې اعمالو نه نابلده کيږي، دغه اداب د سره ژوندي کولو او رواجولو ضرورت دی.

## (۸۱) دالله ﷻ څخه وېره او ډارېدل:-

د الله ﷻ د لويي حق دادی چي دده د ناخوښي څخه انسان هميشه په وېره کي وي د الله ﷻ د ناراضی وېره هغه عمل دی چي په قران کريم او احاديثو کي په ډېرو ځايونو کي تاکيد شوی دی او ددې فضائل بيان شوي دي.

د حضرت محمد ﷺ اکا حضرت عباس رضی الله عنه فرمايي: چي موږ يو ځل د حضرت محمد ﷺ سره تر يوې درختي لاندي ناست ؤ په دې مهال د درختي وچ

بلګونه ولوېدل او په درخته باندې شنه بلګونه پاته شول، حضرت محمد ﷺ وفرمایل: چې له دغه درختي نه کوم مثال جوړيږي؟ خلګو ورته وویل: "چې الله او د هغه رسول ښه پوهيږي" نبی ﷺ وفرمایل: چې ددې مثال د هغه مؤمن دی چې د الله جل جلاله د خشیت او ویري څخه وبريږي نو يې ګناهوي رژيږي نیکي او ښه عملونه يې پاته کيږي.

(الترغيب مخ۲۲۷ پنځم ټوک په حواله د بیهقي)

د الله جل جلاله ډار او وېره په زړه کي د پیداکولو لپاره د الله جل جلاله د لويي او قدرت خيال بايد په زړه کي ټينګ کړل شي، د مخکني امتونو انجام په فکر کي راوستل شي او په قران او حدیث کي د باغيانو او نافرمانو خلګو لپاره چي کوم عذابونه بیان شوي دي د هغه تصور وشي دغه ډول د الله جل جلاله ډار او وېره په زړه کي پیدا کيږي او ددې په نتیجه کي د ګناهونو ناوړه چلونو اوظلم او زیاتوب باندي د انسان جرأت ختميږي

او په نتیجه کي به "تقوی" ومومي، کوم چي د ټولو ښو عملونو بنسټ او په دنیا او اخرت کي د انسان د اصلاح او کامیابۍ یوازینۍ لاره ده، الله ﷻ دي موږ ټولو ته دغه نعمت را په برخه کړي آمین.

## (۸۲) د الله ﷻ څخه امید او ښه گمان لرل:-

د الله ﷻ د ډار او ویري سره دده د رحمت څخه د خپل ځان لپاره د ښو امید لرل هم یو ستر عمل دی د حضرت ابوهریره ؓ روایت دی چي حضرت محمد ﷺ فرمایلي دي:

اِنَّ حُسْنَ الظَّنِّ مِنْ حُسْنِ عِبَادَةِ اللهِ. (ترمذي حاکم)

**ترجمه**: د الله ﷻ سره ښه گمان لرل هم د الله ﷻ یو ښهٔ عبادت دی.

او په یو قدسي حدیث کي حضرت محمد ﷺ دغه ارشاد بیان کړی دی:

اَنَا عِنْدَ ظَنِّ بِیْ وَاَنَا مَعَهُ حَيْثُ يَذْكُرُنِى.

زما بنده چي په ما باندي څه ګمان لري، زه هغه ډول چلن ورسره کوم او چيري چي ما ياد کړي زه ورسره يم. (مسلم)

مطلب دا چي په قران او حديث کي د الله جل جلاله د رحمت نه بنه اميد لرلو ډير فضايل راغلي دي خو ددې دا مطلب دی چي انسان د خپل وس او طاقت سره سم د الله جل جلاله د احکامو سره برابر ژوند تيرولو کوښښ وکړي او چيري چي ددې کوښښ سره خطاوي او غلطي وشي نو د هغه په اړه د الله د رحمت نه اميد لرونکي و اوسي خو که کوم سړی په خپل ژوند کي د الله د حکمونو څخه بالکل غافله شي، د خپل اصلاح هيڅ فکر ونه کړي او خپل ځان بې لګامه د نفساني غوښتونو پسي د تللو لپاره ازاد پرېږدي او ددغه غفلت او بې فکري سره دغه اميدونه يې وي چي خپله به بخښنه وشي نو د داسي سړي په حديث کي سخت

بدوالی بیان شوی دی.

صحیح فکر او عمل دادی چي د خپل اصلاح د فکر سره انسان د الله ﷻ د ډار او ویري سره بنه ګمان او دده د رحمت نه امید لرل دواړي خبري داسي یو ځای کړل شي چي د "ویري او امید" یو ځای شوی کیفیت ورباندي غالب وي.

د حضرت انس ﷺ څخه روایت دی چي حضرت محمد ﷺ ویو ځوان ته تشریف وروړ چي د مرګ په حالت کي ؤ نبی ﷺ پوښتنه ځیني وکړه چي ته د څه شي احساس کوې؟ هغه ورته وویل: "یا رسول الله! زه د الله ﷻ څخه ډېر امید لرم خو ورسره د خپلو ګناهونو ویره هم راسره ده" حضرت محمد ﷺ وفرمایل: چي د کوم مؤمن په زړه کي پر داسي مهال باندي دغه دواړي خبري یو ځای شي الله ﷻ د هغه امید پوره کوي او هغه د خپل ویري څخه په امان کي لري. (ترمذي)

۵

لُعِنَ الَّذِينَ كَفَرُوا مِن بَنِي إِسْرَائِيلَ عَلَىٰ لِسَانِ دَاوُودَ وَعِيسَى
ابْنِ مَرْيَمَ ذَٰلِكَ بِمَا عَصَوا وَّكَانُوا يَعْتَدُونَ

# بی خونده گناهونه


لیکنه:

مُفسرِ القرآن، مفتی اعظم حضرت مولانا مُفتی محمد شفیع صاحب

رحمهُ الله تعالی

ترجمه او حاشیه

مُفتی محمد معصوم افغانی



مکتبه حکیم الامت تهانوی

کاسی روڈ کوئٹه

۷

اَلْغِیْبَۃُ اَشَدُّ مِنَ الزِّنَا (طبرانی)

# غیبت عذاب

وعظ

شیخ المشایخ، فقیہ العصر، مفتی اعظم حضرت مولانا مفتی رشید احمد لدھیانوی

رحمہ اللہ تعالیٰ

مترجم

مفتی محمد معصوم افغانی


مکتبہ حکیم الامت تھانوی

کاسی روڈ کوئٹہ

٤

وقرن فی بیوتکن ولا تبرجن تبرج الجاہلیۃ الاولیٰ

# شرعی حجاب

وعظ

شیخ المشائخ فقیہ العصر مفتی اعظم حضرت مولانا مفتی رشید احمد لدھیانوی
رحمہ اللہ تعالیٰ

ترجمه او حاشيه

مفتی محمد معصوم افغانی

مکتبہ حکیم الامت تھانوی



ظهر الفساد في البر والبحر بما كسبت أيدي الناس
ليذيقهم بعض الذي عملوا لعلهم يرجعون

# جزاء الاعمال

مؤلفہ

امام العارفین حکیم الامت حضرت مولانا شاہ محمد اشرف علی تھانوی

نور اللہ مرقدہ

مترجم

مفتی محمد معصوم افغانی

مکتبہ حکیم الامت
کانسی روڈ، کوئٹہ